# د فقهي کتابونو له پاڼو څخه

(دوهمه برخه مونځ)

مفتي کفایت الله وردګ

# د کتاب په اړه



د کتاب نوم : د فقهي کتابونو له پانو څخه (۲)

لیکوال : مفتي کفایت الله وردګ

د کمپیوټر چارې : محمد نذیر (ذبیح) 03138182431

د چاپ وار : لمړی

د چاپ شمېره : ۱۰۰۰ ټوکه

ZamZam
Publication Company



زم زم
خپرندویه ټولنه

Zamzam_publication@yahoo.com



00923009808094
00923009101098

Unit R 7 Alwajid Plaza, Faisalcolony Chawk, Dalazak road
Peshawar, KPK, Pakistan



# د فقهي كتابونو له پاڼو څخه

په زړونو كې د اسلامي جذبې لرونكو ځو ورونو زمونږ ددې لپاره ملا تړلې ده چې تر پورتني نوم لاندې د كتابونو يوه سلسله روانه وساتو پدې سلسله كې مونږ كوښښ كوو چې په ساده او روانه پښتو كې د ينې ضروري مسئلې را غونډې او خپلو پښتنو ورونو ته يې وړاندې كړو سره ددې چې پدې موضوع كې كتابونه له وړاندې نه هم ډير دي هرچا د خپل وس مطابق كوښښ كړى دى مونږ د هغوى د ټولو كوښښونو قدر كوو او د الله ① نه ورته اجر عظيم غواړو لكن په زمزم كې شريكو ملګرو چې ددې سلسلې لپاره كومه نقشه تياره كړېده هغه تر بهتر څخه هم بهترينه ده پدې سلسله كې به داسې مسئلې را جمع كيږي چې په اسلامي معلوماتو كې ځوك د صفر نه واخلي د مهارت تر حد پورې يې ورسوي او ددې سلسلې به له ډيرو صفاتو څخه يو صفت دا وي چې كه ځوك په ځان ددې د مطالعې التزام وكوي نو بغير د استاذ نه به په كور كې ترينه داسې مسئلې زده كولى شي لكه ژوندى استاذ چې دده سره په كور كې وي .

پدې كتابونو كې :

تاسې ته ستاسې په ژبه ديني مسائل وړاندې كول .

لتاسې سره د سمې لارې په پيدا كولو كې مرسته كول .

تاسې ته د اسلام مطالعې لپاره د ښو او فايده منو موادو په لاس درکول .

له لويو کتابونو څخه لويې خبرې تاسې ته ستاسې د اسانتيا لپاره د وړو رسالو په شکل کې درکول .

ديني ضروري مسئلې چې کېداى شي اوس ستاسې هېرې شوې وي بېرته تاسې ته در په زړه کول .

مقدس دين ته په ښکلې پښتو ژبه خدمت کول .

او داسې نور مطلبونه خوندي دي .

پدې سلسله کې مونږ کوښښ کوو چې يوه خبره هم د خپل دماغ نه پکې ځاى نه کړو د کتاب په آخر کې به مونږ د هغه فتاواوو او کتابونو لست خامخا ستاسې خدمت ته وړاندې کوو چې مونږ ترېنه اخذ کوو او په دې رساله کې به ټولې خبرې د حضرت امام ابي حنيفه رحمه الله د مذهب او مسلک مطابق وي .

که پدې اړه ستاسې څه ډول اعتراض، سوال، نيوکه، نکته، نظريه او يا مشوره وي نو ددې سلسلې چلونکي به يې لتاسې څخه نه يوازې د کور وداني په ويلو سره په ورين تندي واوري بلکه د بيا چاپ کولو په وخت به ستاسې مشوره د خپلو کتابونو ښائست وګرځوي

لله الحمد داده ستاسې تر لاسونو پورې ددې مبارکې لړۍ دوهمه کړۍ در ورسېده او پدې کړۍ کې مونږ د اهل السنة و الجماعة د عقيدې

په اړه د یو څو ټکو نه وروسته په طهارت باندې شروع کړېده امید دی چې ستاسې لپاره به د ډېرې فایدې وړ وګرځي .

مننه

د زمزم خپرندویه ټولنې اداره

E-mail: zamzam_publication@yahoo.com
Fb.com/zamzam07



# مونځ

د حضرت علي ❽ څخه روايت دی چې رسول الله ☸ د يهودو د يوې ډلې سره ناست وو خبرې يې ورسره کولې هغوی ورته وويل : يا رسول الله مونږ درنه د يو څو خبرو پوښتنې کوو؟ رسول الله ☸ ورته اجازه ورکړه هغوی ورته وويل چې دا پنځه وخته مونځ په تاسې ولې فرض شوی دی او ولې دا وختونه ورته تعين کړل شوي دي؟ رسول الله ☸ ورته وويل : د ماسپښين مونځ ځکه چې کله لمر د لوېدو خواته روان شي او تر غرمه ور تېر شي نو ټول مخلوقات د رب ثناء وايي نو مونږ هم پدې وخت کې مونځ کوو، د مازيګر د مانځه وخت هغه وخت دی چې پدې وخت کې آدم عليه السلام په جنت کې غنم وخوړو د ماښام د مانځه وخت هغه وخت دی چې پدې وخت کې الله ① د آدم عليه السلام توبه قبوله کړه نو هرڅوک چې دا مونځونه په ښه توګه وکوي او د الله ① نه هرشی وغواړي هغه به يې ورکوي او د ماسخوتن مونځ هغه مونځ دی چې زما نه وړاندې ټولو انبياوو کړی دی او د سحر مونځ ددې امله چې لمر د شيطان د وو ښکرونو په منيځ کې را خيږي او ډېر کافران هغه ته سجده کوي نو تردې وخت وړاندې مونږ مسلمانان الله ① ته سجده کوو .

دوی ورته وویل یا رسول الله ﷺ تا رښتیا وویل خو که څوک دا مونځونه تول وکوي ثواب یې څه دی؟

رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : د ماسپښین په وخت کې جهنم تر هر وخت زیات ګرم وي دا مونځ چې څوک وکوي نو الله ﷻ به یې د دوزخ له اور نه په امن کړي .

د مازیګر مونځ چې څوک په سمه توګه وکوي الله به یې له ګناهونو څخه په داسې ډول پاک کړي لکه په کومه ورځ چې له مور نه پیدا شوی وو .

د ماښام مونځ په هغه وخت کې وي چې الله ﷻ د حضرت آدم علیه السلام توبه قبوله کړه دا مونځ چې څوک په سمه توګه وکوي او د الله ﷻ نه چې هرشی وغواړي الله ﷻ به یې ورکړي .

د ماسخوتن مونځ په هغه وخت کې کیږي چې تیاره وي او مرګ هم یوه تیاره ده او قبر هم یوه تیاره ده هرڅوک چې د شپې په تیاره کې مونځ کولو ته روان شي نو الله ﷻ به دده په مخ کې تیارې ختمې کړي او ده ته به د هغې په ځای رڼا ورکړي .

د سحر مونځ چې هر مسلمان څلویښت ورځې په جمع سره وکوي الله به دوه نجاتونه ورته ورکړي یو نجات له اور نه او بل نجات له نفاق څخه .

دوی ورته وویل : تا رښتیا وویل محمده ﷺ .

مونځ د اسلام په بناوو کې دوهمه مرتبه لري د خپل وس تر آخري حده پورې به يې انسان په پوره کولو کې کوښښ کوي او منکر يې کافر کيږي .
که څوک يې د فرضيت نه انکار ونه کوي په نه کولو يې د چا مرګ نه دی روا بلکه اسلامي حکومت به د مانځه پرېښودونکی بندي کوي تردې چې توبه وباسي او بيرته مونځ شروع کړي (مجمع البحرين)
چې کله د مانځه وخت داخل شي نو ضروري نه ده چې په اول وخت کې اداء کړل شي بلکه ترڅو يې چې وخت تېر شوی نه وي مونځ کونکی اختيار لري چې په هروخت کې يې زړه وي ودې کوي .
او د مانځه د فرضيت لپاره دری شرطونه دي :
١ . اسلام
په هغه چا باندې ددې د فرضيت حکم کيږي چې هغه اسلام قبول کړی وي .
٢ . بلوغ
په ماشومانو باندې نه دی فرض لکن ددې لپاره چې تر بلوغ وړاندې بايد ماشوم ددې سره عادت وي د اوو کلونو په عمر کې به ماشوم ته مونځ ور ښودل کيږي او وربانديې کول کيږي به کله چې د لسو کلونو شي نو که يې مونځ نه کولو وربانديې مجبور کول کيږي به .
رسول الله ﷺ فرمايي (کله چې ستاسې ماشومان د اوو کلونو شول نو تاسې ورته امر وکوئ چې مونځونه وکوي او کله چې د لسو کلونو شول نو

که یې نه کولو وهئ یې او پدې عمر کې یې بسترې وربېلې کړئ)

۳. عقل

په لیوني باندې نه دی فرض ځکه ترڅو چې په انسان کې عقل نه وي د فرضیت حکم وربادندې نه راځي .



# پنځه وخته مونځ

الله ① فرمايي :

إِنَّ الصَّلاَةَ كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ كِتَاباً مَوْقُوتاً

ترجمه : بېشکه مونځ په مؤمنانو باندې په وخت سره فرض کړل شوی دی .

نکته : د مانځه په رکعتونو کې ډک هغه ته وايي چې د الحمد لله نه وروسته پکې سورت ويل کيږي او خالي هغه ته وايي چې صرف الحمد لله پکې ويل کيږي.

## د سحر مونځ

وخت يې : د صبح الصادق نه شروع کيږي دا هغه سبا وي چې د اسمان په کنارو کې سپين والى را ښکاره شي او د لمرد راختلو تر وخت پورې د سحر د مانځه وخت وي .

د سحر په مانځه کې مستحب ده چې تر هغه وخته پورې يې وروسته کړي چې د قضاء کېدو او يا يې په قضاء کېدلو کې شک را پيدا نه شي او په داسې وخت کې مونځ کول مستحب دي چې که د کوم عذر له امله ښکاره شي چې مونځ خراب شو چې د

بېرته بیا کولو لپاره یې وخت وي . (التبیین/ عالمګیري)

د سحر مونځ څلور رکعته دی دوه رکعته سنت او دوه رکعته فرض






## د ماسپښين مونځ

**وخت يې:** د ماسپښين وخت تر زوال وروسته شروع کيږي او تر هغه وخته پورې وي ترڅو د هر شي سيورى د هغه دوه چنده ته ورسيږي .

پدې باندې د پوهېدلو لاره داده چې په غرمه کې به يو لرگى مستقيماً په زمکه کې ودرول شي وبه کتل شي چې د لرگي سيورى ترڅو کميږي تر هغه وخته پورې لا لمر په ارتفاع کې روان دى ماسپښين لا نه دى شروع شوى يو وخت به داسې راشي چې د لرگي سيورى بېرته مخ په زياتېدو شو نو د اوس نه به د لرگي دا سيورى په نښه کړي کله چې د لرگي سيورى دومره اوږد شو چې هغه سيورى د لرگي د اصلي سيوري نه بيغير دومره وو لکه دوه ځله لرگى نو اوس د ماسپښين مونځ قضاء دى . (فتاوى قاضي خان)

احتياط دادى چې په کوم وخت کې د هرشي سيورى دهغې دوه چنده کيږي تر هغه وخت څخه د وړاندې د ماسپښين مونځ وکوي او کله چې د هر شي سيورى د هغه شي دوه چنده شي نو مازيگر مونځ بيا روا دى .

په اوړي کې د ماسپښين مونځ وروسته کول او په ژمي کې وختي کول مستحب دي .

د ماسپښین مونځ لس رکعته دی څلور رکعته سنت څلور رکعته فرض دوه رکعته سنت .




د مازیګر مونځ

وخت یې : د ماسپښین د مانځه د قضاء کېدلو سره د مازیګر وخت شروع کیږي د لمر تر لوېدلو پورې د مازیګر وخت دی .

د مازیګر مونځ په ژمي او اوړي کې مخکې ددې کول مستحب دي چې د لمر رنګ متغیر شي چې د لمر سترګې ته انسان ګوري سترګې داسې نه بریښوي لکه د ماسپښین یا د غرمې په وخت کې نو همدا د لمر د رنګ تغیر دی او کله چې د لمر د رنګ تغیر یادیږي د رڼا تغیر یې مطلب نه وي . ( الکافي/ عالمګیري)

که د مازيګر په مانځه کې يې شروع وکوله او بيا يې اوږد کړو تردې چې د لمر رنګ متغير شونو دا په کراهيت کې نه راځي .

د مازيګر مونځ څلور رکعته دی فرض .



## د ماښام مونځ

وخت يې : کله چې لمر پريوزي نو د ماښام وخت شروع کيږي او د ماښام وخت هغه وخت ختميږي چې د اسمان په کنارو کې سور والى را پيدا شي .

د ماښام په مانځه کې په هروخت کې بېړه کول مستحب دي که ژمى وي او که اوړى .

د ماښام مونځ پنځه رکعته دى درى رکعته فرض دوه رکعته سنت.



د ماسخوتن مونځ او وتر واجب .

وخت يې : د ماسخوتن او د وترو وخت د شفق د را پيدا کېدلو نه وروسته شروع کيږي د سحر تر را ختلو پورې دوام کوي .

د ماسخوتن په مانځه کې مستحب ده چې د شپې دريمې برخې ته يې وروسته کړي او هغه کسان چې په ځان يې د را وېښېدلو يقين وي د هغوی لپاره مستحب ده چې وتر د شپې آخرې برخې ته پريږدي او که په را وېښېدلو يې يقين نه وو نو وتر تر ويده کېدلو وړاندې کول مستحب دي .

د ماسخوتن مونځ شپږ رکعته دی څلور رکعته فرض دوه رکعته سنت او وتر درې رکعته دي وتر واجب .



په دريو وختونو کې فرض مونځ، سنت ، د جنازي مونځ او د تلاوت سجده کول مکروه دي

- چې لمر لږ را ښکاره شي ترڅو چې ښه را پورته شوی نه وي.
- کله چې لمر په ارتفاع کې کمال ته ورسیږي ترڅو چې زائل شوی نه وي.
- او په مازيگر کې چې لمر سور شي ترڅو غيب شوی نه وي.

د مازيگر په وخت کې د همدې وخت مونځ کول روا دي . (فتاوی قاضي خان)

پدې وختونو کې نفل مونځ کېدلی شي لکن مکروه دي .

پوښتنه : په هغه ملکونو کې چې د پنځه وخته مونځ وخت نه راځي لکه وايي چې په ناروې کې د څو مياشتو په اندازه يوه ورځ وي نو هلته به د مونځونو د وختونو څه حکم وي؟

پدې اړه د علماوو اختلاف دی غوره خبره پکې داده چې هغه خلک به د ساعت او نورو وخت معلومونکي آلو څخه کار اخلي او د مونځونو په مينځ کې به دومره وخت وقفه ورکوي لکه دلته چې د دوو مونځونو په مينځ کې څومره وخت وي او په دې توگه به په ٢٤ ساعتونو کې خپل پنځه مونځونه پوره کوي . (فتح القدير جلد اول صفحه ١٥٦)

همدارنگه په حديثونو کې د دجال د را ښکاره کېدو په وخت پيشگويي شوېده چې يوه ورځ به

داسې راځي چې د يوه کال په اندازه به اوږده وي  د حضرت نواس بن سمعان ❽ په روايت کې د رسول الله ☸ نه ددې ورځې په اړه پوښتنه وشوه چې پدې ورځ کې چې يو کال به اوږده وي مونږ به صرف پنځه مونځونه کوو؟  حضرت نواس بن سمعان ❽ فرمايي :

**قلنا يا رسول الله فذالک اليوم الذي کسنة ايکفينا فيه صلوة يوم  قال لا اقدروا له قدره .**

ترجمه: مونږ ورته وويل ای رسول الله  هغه ورځ چې زمونږ د يو کال برابره وي په هغې کې هم زمونږ د يوې ورځې مونځ کفايت کوي؟

رسول الله ☸ وفرمايل : نه تاسې به ورته اندازه لګوئ . (صحيح مسلم )



# اذان او اقامت

⇦ د اذان لغوي معنی اعلان ده او اصطلاحي معنی يې د مانځه د شروع په وخت کې راتلونکې خاصې کلمې په زوره ويل دي ددې لپاره چې مسلمانانو ته ښکاره کړي چې د مانځه وخت داخل شوی دی د هجرت په اول کال د يوقول له مخې د هجرت په دوهم کال په مدينه منوره کې شروع شوی دی

⇦ اذان په هر هغه ځای کې سنت دی چې فرض مونځ په جمع سره کيږي .

⇦ همدارنګه اقامت هم صرف د هغه فرضو لپاره کيږي چې په جمع سره اداء کيږي .

⇦ د فرضو نه بغير که څوک نفل کوي ، يا تراويح کوي يا د اخترونو مونځونه کوي نه ورته اذان شته نه ورته اقامت شته .

⇦ که چېرته زنانه مونځ په جمع سره کوي د دوی لپاره اذان سنت نه دی او که دوی يې وکوي نو مکروه دی همدارنګه اقامت يې هم مکروه دی .

⇦ که مسافر چېرته مونځ او يا يو کس په خپل کور کې مونځ کوي نو بيا اذان صرف مستحب دی .

⇦ که د مانځه د وخت تر داخلېدلو وړاندې اذان وشو سنت وربانديې نه اداء کيږي کله چې وخت داخل شي بېرته را ګرځول غواړي .

⇦ د اذان لپاره ضروري ده چې اذان کونکی به نارینه وي ، د مانځه په وختونو باندې به پوه وي، قبله به ورته معلومه وي، نېک انسان به وي په سنتو به پوهیږي (النهایه)

⇦ د اذان ذمه واري به هغه چاته په غاړه ورکول کیږي چې هغه یې هر وخت په خپل وخت کولی شي .

⇦ بهتره خبره داده چې څوک اذان وکوي هماغه د اقامت هم ووایي که اذان کونکی حاضر وي او اقامت بل څوک ووایي او د اذان کونکي خوښه نه وي نو بیا مکروه دی او که ده ورته اجازه وکوله بیا نه دی مکروه او یا که اذان کونکی حاضر نه وو نو بغیر د کراهیت نه اقامت بل څوک ویلی شي . (المحیط)

⇦ هغه ماشوم چې لا بلوغ ته نه وي رسېدلی که هوښیار وي نو اذان یې روا دی .

⇦ هغه ماشوم چې هوښیار نه وي او یا لېونی سړی اذان وکوي نو اذان به بېرته را ګرځول کیږي سنت وربانديې نه اداء کیږي .

⇦ هغه څوک چې په نشه کې وي که اذان وکوي نو دا مکروه دی را ګرځول یې مستحب دي . (التبیین)

⇦ که زنانه اذان وکوي دا هم مکروه دی.

⇦ هغه کس چې بد عمل او فاسق وي اذان یې مکروه دی لکن نه به را ګرځول کیږي . (الذخیرة)

- د جنب سړي اذان مکروه دی بېرته به را ګرځول کیږي .
- که د چا اودس نه وي بغیر د کراهیت نه یې اذان روا دی .
- د کېناستلو په حالت کې اذان مکروه دی لکن هغه کس چې په سفر کې وي یوازې وي او د صرف ځان لپاره اذان کول غواړي نو بیا نه دی مکروه .
- که مسافر په سپرلی باندې سپور اذان کوي نو نه دی مکروه .
- چې د یوې محلې معلوم جومات وي په هغې کې یو ځل اذان وشي نو چې بله جمع کیږي اذان کول ورته مکروه د ي .
- که داسې جومات وي چې معلوم کسان نلري معلوم موذن او معلوم جومات ونلري او هلته خلک ډله ډله راځي مونځ کوي نو چې هرڅوک راځي سنت ده چې د خپل ځان لپاره اذان وکوي او اقامت ووایي او جمع وکوي .
- د اذان په مینځ کې غاړه تازه کول مکروه دي که اواز یې بند شو او ترڅو چې غاړه تازه نه کړي اذان نشي مکمل کولی بیا نه دي مکروه . (السراج الوهاج)

د اذان کلمات

⇦ زمونږ په مذهب اذان پنځلس کلمې دی او آخر یې لا اله الا الله دی . (فتاوی قاضي خان)
او کلمې یې دادي .

اللَّهُ أَكْبَرُ ، اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ ، اللَّهُ أَكْبَرُ أَشْهَدُ أَنْ لا إِلَهَ إِلا اللَّهُ أَشْهَدُ أَنْ لا إِلَهَ إِلا اللَّهُ أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ حَيَّ عَلَى الصَّلاةِ حَيَّ عَلَى الصَّلاةِ حَيَّ عَلَى الْفَلاحِ حَيَّ عَلَى الْفَلاحِ اللَّهُ أَكْبَرُ ، اللَّهُ أَكْبَرُ لا إِلَهَ إِلا اللَّهُ

⇦ د سحر په اذان کې به د **حَيَّ عَلَى الْفَلاحِ** نه وروسته دوه ځله وايي **الصلاة خير من النوم**

⇦ او اقامت اولس کلمې دی پنځلس کلمې پورتنۍ د اذان کلمې دي او دوه ځله پکې **قَدْ قَامَتْ الصَّلَاةُ** دي :

اللَّهُ أَكْبَرُ ، اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ ، اللَّهُ أَكْبَرُ أَشْهَدُ أَنْ لا إِلَهَ إِلا اللَّهُ أَشْهَدُ أَنْ لا إِلَهَ إِلا اللَّهُ أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ حَيَّ عَلَى الصَّلاةِ حَيَّ عَلَى الصَّلاةِ حَيَّ

**عَلَى الْفَلاحِ حَيَّ عَلَى الْفَلاحِ قَدْ قَامَتْ الصَّلَاةُ ، قَدْ قَامَتْ الصَّلَاةُ اللَّهُ أَكْبَرُ ، اللَّهُ أَكْبَرُ لا إِلَهَ إِلا اللَّهُ**

- ⇦ اذان به پداسې ځای کې کوي چې څومره کېدلی شي چې ډېر خلک يې واوري دا هم په اذان کې سنت دي .
- ⇦ اذان کونکی به د خپل اواز د پورته کولو کوښښ کوي ترڅو چې ده ته د تکليف لامل نه ګرځي .
- ⇦ په **حَيَّ عَلَى الصَّلاةِ** سره به مخ ښي طرف ته اړوي همدارنګه په **حَيَّ عَلَى الْفَلاحِ** سره به چپ طرف ته مخ اړوي.
- ⇦ د اذان د کلماتو په مينځ کې به پيوستونه نه راولي بلکه په دمه دمه سره به يې کوي او اقامت به تر اذان څخه زر زر کوي .
- ⇦ موذن چې څومره کولی شي اذان به په ښائسته اواز سره کوي لکن چې د موسيقي په ډول غاړې تري جوړې نه شي او د موسيقي په طرز د اواز ښکته والی او پورته والی به پکې نه کوي .
- ⇦ په غوږونو کې ګوتې اچول مستحب دي ددې لپاره ښه ګڼل شوي دي چې ددې سره اواز تېزېدلی شي او که چا په غوږونو کې د ګوتو اچولو نه بغير اذان وکولو نو هم کيږي .
- ⇦ د اذان او د مانځه په مينځ کې به يوه څه وخت فاصله ورکوي ترڅو اذان آورېدونکي خلک

مانځه ته راشي صرف د ماښام د اذان څخه وروسته به دومره صبر وکوي چې تقريباً درى آيتونه لنډ او يا يو اوږد آيت پکې تلاوت کېدلى شي . (النهاية)

⇦ ښه خبره داده چې د نورو مونځونو لپاره د وخت په شروع کې اذان وکوي او د وخت په نيمايي کې مونځ وکوي ترڅو اودس کونکى تر خپل اودس او يو حاجتمند تر خپل کار څخه ځان ورته را فارغ کړي .

⇦ کله چې مانځه درېدلو ته لږ وخت هم وي نو په ولاړه انتظار ورته مکروه دى بلکه ورته دې کيني کله چې اقامت کونکي وويل حى على الفلاح نو مانځه ته به پاڅيږي .

⇦ او کله چې اقامت ويل کيږي نو امام ته هم مستحب ده چې تر قد قامت الصلاة څخه لږ وړاندې نيت وتړي او تکبير ووايي .

⇦ کله چې اذان آورېدل کيږي له مؤذن سره د اذان کلمې تېرول سنت دي او کله چې هغه وايي حى على الصلاة نو آورېدونکى به دا ورسره نه تکرار کوي بلکه ددې په ځاى به ووايي لاحول و لا قوة الا با لله العلى العظيم او کله چې مؤذن وايي حى على الفلاح نو آورېدونکى به وايي : ماشاء الله کان و ما لم يشالم يکن . (محيط السرخسي)

⇦ د سحر په اذان کې چې کله اذان کونکی ووايي : **الصلاة خير من النوم** نو آورېدونکی به وايي : **صدقتَ و بررتَ** .

⇦ هغه کس چې په مانځه ولاړ وي ، يا خورا ک کوي، يا يې خطبې ته غوږ نيولی وي يا د جماع په حالت کې وي بيا د موذن سره د هغه جملې تکرار کول لازم نه دي (مراقی الفلاح)

⇦ د اقامت ويونکي سره هم دهغه کلمات تکرارول په همدې ډول سره مستحب دي او کله چې هغه وايي **قد قامت الصلاة** نو آورېدونکی به وايي **اقامها ا لله و ادامها ما دامت السموات والارض** . (فتح القدير)

⇦ ترڅو چې اذان ختم شوی نه وي هر ډول خبرې مکروه دي نه به خبرې کوي ، نه به تلاوت کوي او نه به بل څه کار کوي صرف د اذان کونکي ځواب به ورکوي لکه دا اوس يې چې طريقه تېره شوه .

⇦ او که چا تلاوت کولو او پدې وخت کې اذان شروع شو نو تلاوت به ورته ودروي .

## د مانځه طریقه

❖ کله يې چې د مانځه اراده وکوله نو خپل لاسونه به تر لستوڼيو را وباسي نيت به وکوي (که په زړه سره يې کولی شي نو په زړه کې دې وکوي او که د زړه توجه نشي سمولی نو چې د هر مانځه لپاره نيت کوي په خوله به ووايي ) او خپل لاسونه به پورته کړي نارينه به خپلې ابهامې (بټې) ګوتې د غوږو نرميو ته ورسوي او زنانه به يې اوږو ته ورسوي .

⇦ د الله اکبر سره به خپل سر نه ښوروي .

⇦ د لاسونو پورته کولو په وخت به د لاس ګوتې يو له بل نه سره بېلې کړي او د لاسونو ورغوي به قبلې ته مخامخ کړي.

⇦ کله يې چې ګوتې د غوږونو د نرميو سره ولګيږي بيا به

**الله اکبر** (الله لوی دی) ووايي .

⇦ د لاسونو پورته کول به تر الله اکبر څخه وړاندې وي . (الهداية) همدارنګه د قنوت لپاره چې لاس پورته کوي لاس پورته کول به تر تکبير څخه وړاندې وي همدارنګه د اختر په مانځه کې لاس پورته کول تر تکبير څخه وړاندې دي .

⇦ که الله اکبر يې وويل او لاس يې پورته نه کړل نو د تکبير نه وروسته به يې نه پورته کوي .

- که د تکبیر په مینځ کې ور په یاد شول نو پورته یې دې کړي .
- که په لاس کې د څه تکلیف له امله لاس تر هغه ځایه پورې نشي پورته کولی چې څومره سنت وي نو څومره یې چې پورته کولی شي تر هغه ځایه پورې یې د پورته کړي .
- که یو لاس یې پورته کولی شو بل یې نشوای پورته کولی نو کوم چې پورته کولی شي هغه د پورته کړي.
- په الله اکبر ویلو کې په اول الف سره مد کول نا روا دي که چا قصداً وکولو نو د کفر خطر دی او که په غلطي سره د چا نه وشو نو پدې تکبیر سره په مانځه کې شروع نه کیږي (المبسوط)
- همدارنګه که چا د اکبر الف ته مد ورکړو پدې تکبیر سره په مانځه کې شروع نه کیږي همدارنګه که ب د اکبر ته یې مد ورکړو دا تکبیر نه صحیح کیږي . (فتح القدیر)
- د تکبیر نه وروسته به ښی لاس په چپ لاس باندې تر نو لاندې کېږدي .
- زنانه به خپل لاسونه په همدې ډول په سینه باندې کیږدي .

نکته : کله چې په درېدلو کې څه ویل وي نو سنت طریقه داده چې لاس تر نو لاندې کېښودل شي لکه په عام مانځه کې یا د جنازې په مانځه کې

او که په ولاړه کې څه خاص شی ویل سنت نه وي نو لاسونه ښکته ځړېدلې سنت دي لکه د اخترونو د تکبیرونو په مینځ کې او په قومه (د رکوع نه د پورته کېدلو وروسته) هم لاس ځړېدلي په کار دي ځکه هلته ذکر د قیام د حالت نه بلکه د یو حالت نه بل حالت د تللو لپاره دی. (النهایة / الهدایة)

⇦ په لاسونو کېښودلو کې به ښی لاس په چپ لاس کیږدي اود ښي لاس لویه ګوته (ابهامه) او وړوکې ګوته خنصره (خچې) به تر مړوند تاو کړي او پاتې درې ګوتې به په چپ لاس باندې هموارې پرېږدي .

⇦ د پښو په مینځ کې به د څلورو ګوتو په اندازه باندې فاصله پرېږدي .

بیا به ووایي :

## سُبحانَکَ اللّٰهُمَّ و بِحَمدِکَ و تَبَارَکَ اسمُکَ و تَعَالی جَدُّکَ و لا الٰهَ غَیرُکَ

ترجمه : پاکي ده ای الله تا لره حمد ښایي تا لره مبارک دی نوم ستا لوړ دی شان ستا نه بغیر لائق د عبادت نشته .

⇦ په هر حالت کې دا ویل سنت دي که امام وي ، که مقتدي وي او که یوازې مونځ کونکی وي .

بیا به **اعوذُ بِاللهِ مِنَ الشَّیطانِ الرَّجیم** ووایي ( پناه غواړم په الله باندې له شیطان رټل شوي څخه )

⇦ که د الحمد لله تر ویلو وروسته ور په زړه شول چې ده اعوذ با لله ونه ویله نو اوس د نه وایي .

⇦ بیا به بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَـٰنِ ٱلرَّحِيمِ ووايي ( شروع کوم په نوم د الله چې مهربان او رحم لرونکی دی ) او دا بسم الله به د هر رکعت په شروع کې وایي . (التتارخانية)

⇦ بیا به الحمد لله شروع کړي :

ٱلۡحَمۡدُ لِلَّهِ رَبِّ ٱلۡعَـٰلَمِينَ ﴿٢﴾ ٱلرَّحۡمَـٰنِ ٱلرَّحِيمِ ﴿٣﴾ مَـٰلِكِ يَوۡمِ ٱلدِّينِ ﴿٤﴾ إِيَّاكَ نَعۡبُدُ وَإِيَّاكَ نَسۡتَعِينُ ﴿٥﴾ ٱهۡدِنَا ٱلصِّرَٰطَ ٱلۡمُسۡتَقِيمَ ﴿٦﴾ صِرَٰطَ ٱلَّذِينَ أَنۡعَمۡتَ عَلَيۡهِمۡ غَيۡرِ ٱلۡمَغۡضُوبِ عَلَيۡهِمۡ وَلَا ٱلضَّآلِّينَ ﴿٧﴾

ترجمه : حمد ثنا ده هغه ذات لره چې د ټول عالم رب دی مهربان او د رحم خاوند دی د قیامت د ورځې مالک دی ای ربه همدا تا ته مونږ عبادت کوو او لتا څخه مرسته غواړو ، مونږ ته د سمې لارې هدایت وکوه د هغه لارې ته راته هدایت وکوه چې تا وربانديې انعام کړی دی دهغه خلکو لار مونږ ته مه را ښایه چې تا وربانديې غضب کړی دی او نه د هغه کسانو لار چې هغوی گمراه دي .

⇦ د الحمد لله په اخر کې به په پټه سره آمين هم ووايي که امام وي ، که مقتدي او که يوازې مونځ کونکی وي په هر حالت کې امين په پټه ويل سنت دي.

⇦ او که امام په خفيه مونځونو کې تلاوت په داسې اواز سره کولو چې بيا هم مقتدي واورېدل چې امام وويل ولا الضالين نو بيا به هم دی آمين پسې نه وايي .

⇦ د الحمد لله او سورت په مينځ کې به بسم الله نه وايي (الوقاية و النقاية / عالمګيري)

⇦ د آمين نه وروسته به په الحمد لله پسې درې لنډ آيتونه يا يو اوږد آيت او يا يو سورت او که بل سورت يې نه وو زده نو سورت اخلاص به ووايي :

قُلۡ هُوَ ٱللَّهُ أَحَدٌ ١ ٱللَّهُ ٱلصَّمَدُ ٢ لَمۡ يَلِدۡ وَلَمۡ يُولَدۡ ٣ وَلَمۡ يَكُن لَّهُۥ كُفُوًا أَحَدُۢ ٤

ترجمه : ووايه چې الله يو دی، الله بې نيازه دی، نه له ده څخه څوک پيدا شوي او نه دی له چا څخه پيدا شوی دی، دده هېڅوک سيال نشته .

⇦ بيا به الله اکبر ووايي او رکوع به وکوي او د ښکته کېدلو په دوران کې به الله اکبر وايي چې شروع يې په ولاړه وکوي او په رکوع کې يې ختم کړي .

⇦ امام به دا تکبیر او ټول د انتقال تکبیرونه په زوره وایي .

په رکوع کې به خپله شا همواره ساتي پداسې ډول چې که کوم لوښی یې په شا کېښودل شي هغه به هلته ودریږي.

په الله اکبر کې به په ( ر) باندې وقف کوي او (ر) به ساکنه ساتي.

⇦ په رکوع کې به خپل لاسونه په زنګنونو باندې تکیه کړي نارینه به خپل زنګنونه کلک ونیسي او پښې به سیده کړي د خپل بدن نه به قائمه زاویه جوړه کړي زنانه به په رکوع کې خپل زنګنونه په خلاصو ګوتو نه نیسي بلکه په عادي ډول به خپل لاسونه په زنګونو کیږدي او پښې به هم لکه د نارینه وو داسې نه سیده کوي.

⇦ درې ځله به ووایي :

سُبحانَ ربِّی العَظِیم

ترجمه : پاکي ده زما رب ته چې لوی دی .

⇦ تردریو به یې نه کموي که یې زیات ویل غواړي نو ثواب دی لکن کوښښ به کوي چې طاق یې ووایي او که یې تر دریو ځلو کم وویل نو مکروه دی .

⇦ که امام وي د رکوع نه په پورته کېدلو کې به په زوره او که یوازې مونځ کونکی کونکی وي نو په پټه سره به ووایي :

سَمِعَ اللّهُ لِمَن حَمِدَه

ترجمه : څوک چې د الله حمد وايي ① يې آوري که مقتدي وي هغه به دا نه وايي کله چې ودريږي نو بيا به ووايي :

## ربَّنا (و) لَکَ الحَمد

ترجمه : ای زمونږ ربه تا لره ثناء ده .

⇦ او امام به دا نه وايي او هغه کس چې يوازې مونځ کوي هغه به يې وايي لکن پټ .

⇦ که تر هغه وخته يې سمع الله لمن حمده ونه ويل چې نېغ و درېدو نو دهغې نه وروسته به يې بيا نه وايي ځکه دا د رکوع نه د پورته کېدلو په وخت کې سنت وو .

⇦ همدارنګه ټول تسبيحات او تکبيرونه چې د خپل ځای نه پاتې شي وروسته به يې بيا نه وايي .

⇦ کله چې د رکوع نه را پاڅېدو چې نېغ و درېدو او ټول اندامونه او جامه يې په قرار شول بيا به سجدې ته د الله اکبر ويلو سره ښکته شي .

سجدې ته چې ښکته کيږي اول به زنګنونه په زمکه کيږدي بيا لاسونه او بيا مخ پوزه او تندی به دواړه په زمکه کيږدي دری ځله به ووايي :

## سُبحانَ ربِّی الاعلی

ترجمه : پاکي ده زما رب لره چې لوی دی .

⇦ دری يې کمه اندازه ده که يې زيات ويل غواړي ثواب دی لکن کوښښ به کوي چې طاق يې ووايي که يې له دريو نه کم کړل نو مکروه دی .

⇦ په سجده کې به لاسونه هموار په زمکه کیږدي د ګوتو سرونه به قبلې لوري ته وغزوي او مخ به د دواړو لاسونو په مینځ کې ور کیږدي .

⇦ نارینه به په سجده کې خپله ګېډه له خپلو زنګنونو څخه لرې ساتي خپلې څنګلې به له خپلو طرفونو څخه لرې کړي او څنګلې به په زمکه باندې نه غوړوي زنانه به دا هرڅه سره سریښ ساتي.

⇦ هغه څوک چې امامت کوي د هغه لپاره مستحب ده چې رکوع او سجده دومره اوږده نه کړي چې مقتدیان ترینه خسته شي .

⇦ بیا به الله اکبر ووایي له سجدې نه به را پاڅیږي او په اطمنان سره به کیني.

⇦ بېا به الله اکبر ووایي او دوهمې سجدې ته به ښکته شي په دوهمه سجده کې به هم د اولې سجدې په ډول تسبیحات ووایي .

⇦ د دوهمې سجدې نه چې را پورته شي نو په زمکه به نه کیني سیده به د درېدلو کوښښ کوي .

⇦ که عذر نه وي نو د پورته کېدلو په حالت کې به په زمکه لاس نه تکیه کوي خپل لاسونه دې په زنګنونو کیږدي او د درېدلو کوښښ دې وکوي. (البحر الرائق)

⇦ دوهم رکعت به هم لکه اول داسې وکوي صرف اعوذ بالله به پکې نه وایي .

⇦ چې په دوهم رکعت کې يې د دوهمې سجدې نه سر را پورته کړو نو ناريـنه به ښۍ پښه ودروي او چپه پښه به ځملوي په چپه پښه به کينني او زنانه به دواړه پښې ښي طرف ته وباسي او په چپ طرف به کيني لاسونه به په زنګنونو باندې په عادي حالت کيږدي او وبه وايي :

**التَّحيّاتُ لِلّٰهِ و الصَّلَواتُ و الطَّيِّباتُ السَّلامُ علَيکَ ايُّها النَّبیُّ و رَحمَهُ اللهِ و بَرَکاتُهُ السَّلامُ علَينا و علی عِبادِ اللهِ الصّالِحينَ اشهَدُ ان لا الهَ الّا اللهُ و اشهَدُ انَّ محمَّداً عَبدُهُ و رَسولُهُ**

ترجمه : ټول زباني او بدني عبادتونه الله ① لره دي او ټول پاکيزه کارونه يا ټول مالي عبادتونه هم الله لره دي سلامتيا د وي په تا باندې اى نبي او د الله رحمت او برکت د وي په تا باندې او د الله په هغه بندګانو چې هغوی نېک دي زه ددې ګواهي ورکوم چې نشته لائق د عبادت بغير د الله نه او زه ددې ګواهي ورکوم چې حضرت محمد ☸ د الله ① بنده اورسول دی.

⇦ د التحيات لله د ويلو په وخت کې به خپلې سينې ته ګوري .

⇦ که دوه رکعته مونځ وو نو د تشهد نه وروسته به ووايي :

اللّٰهُمَّ صَلِّ علی مُحمَّدٍ و علی آلِ محمّدٍ کَما صَلَّیتَ علی ابراهیمَ و علی آلِ ابراهیمَ انَّکَ حَمیدٌ مَجیدٌ

ترجمه : ای الله رحمت نازل کړه په محمد ﷺ او د هغه په آل باندې لکه چې تا رحمت نازل کړی دی په حضرت ابراهیم ؑ او د هغه په آل باندې بېشکه ته د ستاینې وړ او لوی یې.

اللّٰهُمَّ بارِک علی مُحمَّدٍ و علی الِ محمّدٍ کَما بارکتَ علی ابراهیمَ و علی الِ ابراهیمَ انَّکَ حَمیدٌ مَجیدٌ

ترجمه : ای الله برکت نازل کړه په محمد ﷺ او د هغه په آل باندې لکه چې تا برکت نازل کړی دی په حضرت ابراهیم ؑ او د هغه په آل باندې بېشکه ته د ستاینې وړ او لوی یې.

اللّٰهُمَّ رَبَّنَآ ءَاتِنَا فِي ٱلدُّنۡيَا حَسَنَةً وَفِي ٱلۡأٓخِرَةِ حَسَنَةً وَقِنَا عَذَابَ ٱلنَّارِ

ترجمه : ای زمونږ ربه راکړه مونږ ته په دنیا کې نیکي او په آخرت کې نیکي او وساته مونږ د اور له عذابه .

⇦ بیا به ښي طرف ته سلام و ګرځوي او وبه وایي :

السَّلامُ علَیکُم و رَحمَۃُ الله

ترجمه : پر تاسې دې سلام وي (ای کرام الکاتبین که له خلکو سره په جمع کې شریک وي د هغه خلکو نیت به هم پکې کوي چې دده پدې طرف کې دي او

که امام یې دې طرف ته وو دهغه نیت به هم پکې کوي) او د الله رحمت د وي په تاسې باندې .

⇦ بیا به چپ طرف ته سلام وګرځوي او وبه وايي :

السَّلامُ علَيكُم و رَحمَةُ الله

⇦ که مونځ تر دوه رکعتونو زیات وو درې او یا څلور وو نو د تشهد نه وروسته به پاڅیږي .

⇦ په دریم او څلورم رکعت کې به هرڅه داسې وکوي لکه په دوهم رکعت کې صرف د الحمد لله نه وروسته به سورت او یا آیتونه نه وايي .

⇦ په آخري ځل چې التحیات ته کینې نو د تشهد نه وروسته به درود ووايي او دعا به وکوي او پدې وخت کې که هرڅه دعا کول غواړي نو ودې کوي لکن داسې شی به نه غواړي چې کوم شی له انسانانو څخه هم غوښتل کیږي بلکه کوښښ به کوي چې د قران کریم د الفاظو او یا د حدیثو د الفاظو نه را اخستل شوې وي او بیا به اللهم ربنا ووايي او دواړو طرفونو ته به سلام وګرځوي مونځ به ختم کړي .

⇦ د مثال په ډول هغه دعا چې په مانځه کې یې کوي په هغې کې به مال ، دولت، موټر، کور ، واده او داسې نور شیان نه غواړي ځکه دا شیان له انسانانو څخه هم غوښتل کېدلی شي بلکه د الله رضا، جنت ، مغفرت او دېته ورته شیان به وغواړي چې له انسانانو څخه نه غوښتل کیږي او نه یې انسانان ورکولی شي .

⇦ کله چې په امام پسې مونځ کوي نو چې امام ښي طرف ته له سلام نه فارغ شي بیا به مقتدي ښي لوري ته سلام واړوي او کله چې هغه د چپ طرف نه فارغ شو نو بیا به مقتدي چپ لوري ته سلام واړوي . (فتاوی قاضي خان)

⇦ په وترو کې به په دریم رکعت کې د سورت نه وروسته الله اکبر ووايي غوږونو ته به لاس پورته کړي او په لاندې ډول دعا قنوت به وايي :

اَللّٰهُمَّ اِنّا نَستَعِينُکَ و نَستَغفِرُکَ و نُومِنُ بِکَ و نَتَوَکَّلُ علَيکَ و نُثنِی علَيکَ الخَيرَ و نَشکُرُکَ و لا نَکفُرُکَ و نَخلَعُ و نَترُکُ مَن يَّفجُرُک

اَللّٰهُمَّ اِيّاکَ نَعبُدُ و لَکَ نُصَلِّی و نَسجُدُ و اِلَيکَ نَسعی و نَحفِدُ و نَرجُو رَحمَتَکَ و نَخشی عذابَکَ اِنَّ عذابَکَ بِالکُفّارِ مُلحِق .

ترجمه : ای الله مونږ لتا څخه مرسته غواړو او لتا څخه بښنه غواړو په تا مو ایمان راوړی دی او په تا باندې توکل کوو او ستا د خیر ثنا وایو ستا شکر کوو ستا نا شکري نه کوو مونږ له ځان څخه جدا کوو او پرېږدو هغه څوک چې ستا ګناهونه کوي ای الله مونږ تاته عبادت کوو تاته مونځ کوو او تاته سجده کوو ستا لور ته مونږ

کـوښښ در کـوو او سـتـا لـور تـه مـونـږ مـنـډه در وهـو ستـا د رحمت امـیـد لـرو سـتـا لـه عذاب څخه ډاریـږو بـېشکـه سـتـا عـذاب لـه کـفـارو سره تـړلـی دی .



## د مانځه شرطونه

١. له هر ډول بې اودسي او نجاست نه پاکي .
٢. د ځان جامو او ځای پاکوالی .
٣. د عورت پټول .
٤. قبلې ته مخ کول .
٥. وخت پېژندل او په خپل وخت کې کول.
٦. نیت کول .

## ١. له هر ډول بې اودسي او نا پاکي نه پاکېدل .

⇦ د ځان څخه د بې اودسي لرې کولو په اړه تفصیلي خبرې ددې سلسلې په اول کتاب کې تېرې شوې نو راساً ستاسې خدمت ته اېږدم د ځان، جامو او ځای د پاکوالي په اړه یو څو مسئلې .

## ٢. د ځان جامو او ځای پاکوالی .

⇦ د مونځ کونکي د ځان او دهغه د جامې او د هغه ځای چې مونځ وربانـدې کوي پاکول د هر هغه نجاست څخه فرض دي چې مونځ ورسره نه کیږي چې هغه په نجاست غلیظه کې د یو درهم په اندازه یا تر هغه زیات او په نجاست

خفیفه کې د بدن د کوم اندام او یا جامې د څلورمې برخې سره برابرېدل او یا ترې زیاتېدل دي تفصیل یې ددې نه په وړاندې کتاب کې تېر شوی دی .

- که نجاست غلیظه تر درهم (د ورغوي تر اندازې) زیات وي نو مونځ ورسره نه کیږي وینځل یې فرض دي .
- که نجاست غلیظه د درهم سره برابر وو نو وینځل یې واجب دي او مونځ بیا هم د کراهیت سره ورسره کیږي او که تر درهم لږ وو نو بیا یې وینځل سنت دي .
- هغه ځای چې مونځ کونکی وربانديې مونځ کوي که د سجدې ځای نجس وي نو مونځ کونکی باید صرف د پوزې په لګولو سره سجده وکوي.
- که هغه ځای نجس وي په کوم ځای چې مونځ کونکي خپلې پښې ایښي دي نو بیا هم مونځ نه کیږي .
- که نجاست په هغه ځای کې وو چې سجده کونکی هلته خپل زنګنونه او لاسونه ایږدي نو بیا مونځ کیږي .
- که د سجدې ځای پاک وو لکن کله چې ده سجده کوله جامه یې په هغه ځای لګېده چې هغه نجس وو نو مونځ یې صحیح دی .
- که مونځ کونکی په پاک ځای ودرېدو بیا په مانځه کې له خپل ځای نه لږ یو طرف ته شو هغه ځای نجس وو که هلته یې یو رکن اداء کړو

يا دومره وخت پاتې شو چې يو ركن پكې اداء كېدلى شول نو مونځ يې مات دى او كه بېرته زر ترېنه پاك ځاى ته نقل شو نو بيا مونځ صحيح دى (فتاوى قاضي خان)

- كه په زمكه نجاست وي په هغه باندې يې خاورې واچولې او هغه خاورې دومره وې چې ترېنه لاندې د نجاست بوى نه را پورته كېدو نو بيا مونځ ورباندې كيږي او كه د نجاست بوى يې نشواى پټولى بيا وربادې نه كيږي .
- هغه كلكه تخته چې د دوو تختو نه جوړه شوې وي كه په يو طرف يې نجاست ولګيږي نو په بل طرف يې مونځ كيږي ځكه دا لكه دوه تختې داسې دي اګر كه اوس يوه تخته ده . (مراقى الفلاح)

## ٣. د عورت پټول .

- د عورت پټول هم د مانځه لپاره شرط دي ترڅو يې چې وس وي .
- د نارينه لپاره عورت د نو (نوم) نه شروع تر زنګنونو پورې او زنګنونه يې هم په عورت كې داخل دي .
- د زنانه د مخ، لاسونو او پښو نه سوا نور يې ټول بدن عورت دى پدې كې يې وېښته هم داخل دي هغه هم عورت دي چې ښكاره كيږي مونځ يې نه كيږي .

- په مانځه کې عورت له بل چا نه پټول فرض دي له خپل ځان څخه نه دي فرض د مثال په ډول که چا داسې جامې آغوستې وي چې له پاس نه ځان ته وګوري خپل عورت يې ورته ښکاره کيږي مونځ يې کيږي .
- که کوم انسان په تياره کوټه کې مونځ کوي او جامې يې نه وي آغوستې مونځ يې نه صحيح کيږي سره ددې چې تياره ده .
- په داسې نرۍ جامه کې هم مونځ نه کيږي چې لاندې بدن ترينه ښکاره کيږي .
- که د کپړې کوم ځاى شکېدلى وي او لږ عورت ترينه ښکاره کيږي مونځ پکې کيږي که د عورت د څلرمي برخې په اندازه او يا تردې زيات ښکاره کيږي نو بيا پکې مونځ نه کيږي .
- که جامه څو ځايه شکېدلې وي او لږ لږ ځايونه ترينه ښکاره کيږي چې ټول را ټول کړې نو بيا ترينه د يو اندام څلرمه برخه پوره کيږي بيا هم په هغه جامه کې مونځ نه کيږي .
- که په مانځه کې يې کوم ځاى لوڅ شو زر يې پټ کړو مونځ يې نه خرابيږي او که دومره وخت پاتې شو چې د مانځه کوم رکن يې د لوڅ والي په حالت کې اداء کړو او يا يې رکن هم اداء نه کړو لکن دومره وخت لوڅ پاتې شو که ده غوښتي وى په دومره وخت کې يې يو رکن اداء کولى شول نو بيا مونځ فاسد شوى دى .

⇦ که د کوم عذر له امله څوک په داسې ځای کې واقع شول چې د ځان پټولو لپاره يې جامه نشواى پيدا کولى په کېناستو به مونځ وکوي رکوع او سجده به په اشاره سره کوي .

⇦ د نارينه وو مونځ د وريښمو په جامه کې نه کيږي د زنانه وو پکې کيږي خو بيا هم که بله جامه نه وو نونارينه يې دې هم پکې وکوي .

⇦ د نارينه لپاره مستحب ده چې د مانځه په وخت کې درى جامې ولري قميص ، پرتوگ او لنگۍ لکن که په يوه جامه کې يې خپل ځان و نغښتلو او پکې پټ يې کړو بغير د کراهيت نه يې مونځ صحيح دى .

⇦ همدارنگه د زنانه وو لپاره مستحب ده چې درى جامې وي قميص، پرتوگ او بله جامه چې سر او وېښته پکې پټ کړي .

⇦ که اوږده ټوټه وي يو کس يې په يو طرف او بل يې په بل طرف کې ځان و نغښتلو او عورت يې پټ کړو مونځ صحيح دى .

⇦ که داسې جامه يې پيدا کړه چې هغه هم بې نمازه (نجسه) وه لکن څلرمه برخه يې پاکه وه نو بيا به هم هغه استعمال کړي او لوڅ به مونځ نه کوي .

⇦ او که هغه جامه ټوله نجسه وه او يا تر څلرمې برخې پکې کمه پاکه وه نو بيا يې خوښه که هغه نجسه جامه آغوندي مونځ کوي او که لوڅ مونځ کوي .

⇦ که چېرته ورسره دوه جامې وي يوه پکې نجسه وه لکن له ده څخه هېره وه چې کومه يوه نجسه وه صرف فکر دې پکې وکوي او چې په کومه يې د پاکې ګمان شو په هماغه کې دې مونځ وکوي .

⇦ که د جامې يو طرف پاک او بل نجس وي چې په پاک طرف کې ځان ونغاړي نو کله چې د مانځه په وخت کې دی ښکته او پورته کيږي که نجس طرف ورسره ښوريږي مونځ پکې نه کيږي او که نه ورسره ښوريږي (جامه لويه وي) بيا پکې مونځ صحيح دی .

⇦ که په جامه باندې نجاست وي لکن تر يو درهم (د ورغوي تر اندازې) کم وي مخکې تېر شول چې وينځل يې فرض نه بلکه سنت دي که د مانځه د قضاء کېدلو خطر نه وي نو ودې وينځي او بيا د مونځ وکوي او که چېرته د مانځه د قضاء کېدلو خطر وو نو بيا د نه وينځي او همدارنګه که ددې وېره وه چې جمع به تربېنه تېره شي لکن په بل ځای کې به جمع را ګير کړي نو بيا د هم نجاست ووينځي او که بيا د جمع د ګير کولو امکان نه وو نو بيا د جمع وکوي .

⇦ که په جامه کې يې نجاست وليدو او غليظه نجاست وو تر يو درهم څخه هم زيات وو لکن دی نه وو خبر چې دده په جامه دا نجاست څه وخت لګېدلی وو په ده باندې د هېڅ مانځه را ګرځول نشته اوس د دووينځي . (محيط السرخسي)

٤. قبلې ته مخ کول .

⇦ فرضونه ، نفلي سنت مونځونه همدارنګه د جنازې مونځ او د تلاوت سجده تر هغه وخته پورې نه صحيح کيږي ترڅو چې قبلې ته پکې مخ وانه اړول شي .

⇦ هغه کسان چې کعبه په سترګو ويني هغوی به بعينه قبلې ته مخ کوي همدارنګه که دده او د قبلې په مخ کې پرده وه يا تعمير وو لکن بيا هم دی پوهيږي چې قبله پدې ځای کې ده نو بعينه هغه ځای ته به مخ کوي. (فتاوی قاضي خان)

⇦ هغه کسان چې په مسجد حرام کې مونځ کوي او حطيم ته يې مخ کړو مونځ يې نه صحيح کيږي (المحيط) او که د حطيم له لوري نه په مانځه ولاړ وو چې مخې ته يې حطيم را تلو او بيا کعبه وه نو صحيح دی.

⇦ هغه کسان چې د مکې نه بهر وي هغوی به صرف د کعبې لوري ته مخ اړوي .

⇦ کوم ځای ته چې انسان نوی لاړ شي او هلته ده ته د قبلې لوری معلوم نه وي نو پوښتنه به کوي هرطرف چې ورته ياد کړل شو نو هماغه د قبلې لوری دی .

⇦ هغه کسان چې د لويو غرونو شاته مونځ کوي او بيا هم مخ قبلې ته اړوي نو دده په حق کې دا صحيح دی ځکه قبله صرف کعبه نه ده بلکه د

کعبې په محاذات (برابري) باندې تر اسمان پورې ساحه قبله ده (المضمرات) .

⇦ په کعبه کې د ننه که څوک مونځ کوي چې هر لوري ته مخ واړوي مونځ صحيح کيږي .

⇦ هغه بېمار چې په بستر پروت وي او خپله ځان قبلې ته نشي برابرولی او بل څوک هم نشته چې دده سره مرسته وکوي نو چې کومې خواته يې مخ وي نيت د وکوي مونځ يې صحيح دی .

⇦ همدارنګه چې څوک د کوم لوري نه د دښمن يا بل ځناور حيوان نه د خطر احساس کوي او ډاريږي که د کعبې لوري ته مخ کړي د بلې خوا نه به وربانديې حمله وشي نو چې کومې خوا ته مخ واړوي مونځ يې صحيح دی .

⇦ هغه څوک چې په کوم ځای کې نوی وي او قبله ورته نه وي معلومه او بل څوک نه وي چې دی ورڅخه پوښتنه وکوي نو د خپل ځان سره دې فکر وکوي او په کوم طرف يې چې ګمان شو هماغه طرف ته د مونځ وکوي او که د مانځه نه وروسته ورته ښکاره شوه چې غلط طرف ته يې مونځ کړی دی نو بيا هم د مانځه ګرځول وربانديې نشته . (عالمګيري)

⇦ که داسې څوک هلته وي چې هغه د هماغه ځای وي نو بيا صرف په خپل فکر باندې کوم طرف ته مونځ کول نه دي روا .

⇦ که داسې څوک وي چې دی ورڅخه پوښتنه وکوي لکن ده له هغه څخه پوښتنه ونه کوله او په

خپل فکر يې يو طرف ته مونځ وکولو نو که صحيح طرف ته يې مونځ وکولو نو صحيح دی او که ښکاره شوه چې غلط طرف ته يې کړی دی نو مونځ به راګرځوي (شرح الطحاوي)

⇦ که په دښته کې وو او د خپل ګمان مطابق يې يو طرف ته مونځ کول غوښتل بل چا ورته وويل چې قبله دې بل لوري ته ده که هغه خبره کونکی کس مسافر وو نو د خپل ګمان مطابق لوري ته د مونځ وکوي او که هغه کس د علاقې کس وو نو دهغه په خبره به عمل کوي (عالمګيري)

⇦ هغه کس چې د لمر او ستوريو په واسطه قبله معلومولی شي نو د خپلې تجربې نه دې کار واخلي چې دده تجربې ده ته کوم طرف قبله وښودو هماغه لور ته د مونځ وکوي بيا ورته د فکر کولو ضرورت نشته .

⇦ په توره شپه کې څوک جومات ته ننوتلو د رڼا څه سهولت نه وو او په جومات کې يې مونځ وکولو بيا وروسته ښکاره شوه چې غلط طرف ته يې مونځ کړی دی بيا يې هم مونځ شوی دی.

⇦ که په دښته کې يو چا فکروکولو او يو طرف ته په مانځه و دريدو او بل کس راغلو په ده پسې يې بغير د فکر کولو نه اقتداء وکوله که دوی قبلې لوري ته مونځ کړی وو نو د دواړو صحيح دی او که غلط شوي وو د اول کس مونځ صحيح دی ځکه ده خپل فکر کړی وو او د دوهم کس نه دی

صحیح ځکه ده ته په کار وو چې څه فکر وکوي بیا مونځ شروع کړي او ده فکر نه وو کړی .

⇦ کله چې په مسجد حرام کې مونځ کیږي نو خلک تر کعبې څخه ګرد را تاویږي د امام په طرف کې به څوک له امام څخه وړاندې نه دریږي او د نورو طرفونو څخه خلک کولی شي چې کعبې ته تر امام نیږدې ور ودریږي .

نکته : قبله نُما چې یوه وړوکې آله ده ددې لپاره اختراع شویده چې مختلف سمتونه انسان ته ښکاره کړي او د هغې په واسطه م مونږ قبله هم معلومولی شي او که په یو ځای کې داسې څوک نه وو چې د قبلې پوښتنه ورڅخه وکول شي او یا داسې څه نښې نه وې چې قبله ترې معلومه کړل شي نو بیا دا آله هم غالب ګمان پیدا کولی شي چې قبله به دې لور ته وي.

هغه کسان چې په اور ګاډي، طیاره، کښتی یا بس کې مونځ کوي نو که کېدای شوه د مانځه په شروع کې به خپل مخ قبلې ته سم کړي که بیا ددوی سپرلې یوې او بلې خواته تاوېده او د دوی مخ د قبلې نه وواښت نو مونځ یې نه خرابیږي.

نکته : په طیاره کې چې کله انسان مونځ کوي هغه به دا فکر نه کوي چې زه اوس په هوا کې روان یم او قبله خو په زمکه پاتې شوه زه اوس کومې خواته مخ کړم ځکه چې قبله صرف د کعبې کوټه نه بلکه تر اسمان پورې پورته دا ساحه ټوله قبله ده .

٦. نیت کول .

⇦ کله یې چې په مانځه کې د شروع کولو اراده وه باید په زړه کې پوه وي چې کوم مونځ کوي یعني که پدې وخت کې چا ورڅخه پوښتنه وکوله چې څه کوې دی به ورته بغیر د فکر کولو ځواب ورکولی شي چې زه دا فلانی مونځ کوم او که په خوله باندې هم خاص الفاظ ورسره وویل نو ښه خبره ده خو په خوله ویل یې فرض نه دي .

⇦ که څوک د کوښښ سره هم د خپل زړه توجه نشي برابرولی د هغه لپاره په خوله ویل هم کفایت کوي .

⇦ د نفل لپاره چې نیت کوي مطلق نیت به کوي چې مونځ کوي .

⇦ د سنتو لپاره چې نیت کوي د رسول الله ﷺ د سنتو د مانځه کولو نیت به کوي .

⇦ د تراویحو لپاره که د تروایح نیت کوي هم روا ده او که د وخت د سنتو نیت کوي هم صحیح ده او که د شپې د مانځه نیت کوي نو هم روا ده .

⇦ فرض مونځ صرف د فرضو په نیت سره نه کیږي بلکه تعین پکې ضروري دی د مثال په ډول تعین به کوي چې فرض د نن ماسپښین مونځ کوم او داسې نور .

⇦ کله چې امام نیت کوي نو هغه به عام نیت کوي د امامت لپاره په نیت کې څه خاص شی زیاتول

نشته او که څه یې پکې زیات کړل هغه زیادت یې تاثیر نه کوي د مثال په توګه که د پنځو کسانو د امامت نیت یې وکولو او شا ته کسان پسې لس شول نو بیا هم هېڅ پروا نه کوي همدارنګه که امام د یو کس په اړه نیت وکولو چې هغه به په ما پسې مونځ نه کوي بیا هغه پسې وکولو مونځ یې شوی دی د امام په نیت کې زیادت پروا نه کوي .

⇦ او څوک چې په امام پسې مونځ کوي هغه به په خپل نیت کې دا خبره زیاتوي چې دی په امام پسې اقتداء کوي.

⇦ که د نفل مانځه لپاره یې نیت وکولو او شروع یې پکې وکوله بیا یې په مینځ کې دعذر له امله یا بلا عذر نه پرېښودل نو ددې مانځه قضاء به را ګرځوي پدې شروع سره نفل په ده باندې واجب شول .

⇦ نیت باید له شروع سره تړلی وي په مینځ کې یې فاصله یا په بل عمل مصروف کېدل نه وي . (فتاوی قاضي خان)

## د مانځه فرضونه

۱. تکبیر تحریمه

- په تکبير سره او يا په دېته ورته کلماتو سره چې د الله تعالى تعظيم پکې نغښتلى وي شروع کول فرض دي لکه الله اجل او داسې نور .
- دا تکبير به په ولاړه سره او که د عذر له امله يې مونځ په کېناستلو سره کولو نو بيا به په کېناستو سره وي او که مونځ يې په ولاړه سره کولو تکبير يې په کېناستلو وويل دا شروع نه ده صحيح .
- همدارنګه کله چې امام رکوع ته لاړ شي او مقتدي غواړي چې امام په رکوع کې را ګير کړي نو الله اکبر به مکمل په ولاړه سره وايي او که الله يې په ولاړه وويل او اکبر يې په رکوع کې ختم کړل نو دا شروع نه صحيح کيږي . (عالمګيري)
- همدارنګه کله چې په امام پسې اقتداء کوي نو کوښښ به کوي چې دده الله اکبر د امام له الله اکبر څخه وروسته واقع شي او که د مقتدي ترې وړاندې شول نو نه ده صحيح .

## ۲. قيام (درېدل)

- دا هم فرض دی که د چا په ملا کې عذر وي سيده نشي درېدلی نو څنګه چې درېدلی شي دده لپاره هغه صحيح دی او که د چا لپاره عذر وي چې بالکل نشي درېدلی نو د هغه لپاره په کېناستلو هم مونځ روا دی.

⇦ ترڅو چې عذر نه وي په یوه پښه باندې دریدل مکروه دي په دواړو پښو باندې به په یو ډول زور کوي او که چېرته په یوه پښه کې څه تکلیف یا بل څه عذر وي نو بلا کراهیت نه په یوه پښه زور کولی شي .

## ۳. قراءة

⇦ د امام ابي حنیفه رحمه الله په مذهب فرض یو آیت دی چې لږ تر لږه دوه کلمې او یا تر هغې څخه زیات وي لکه ثم قتل کیف قدر او یا بل آیت ثم نظر .

⇦ که داسې یو آیت یې تلاوت کړو چې هغه یوه کلمه وو لکه مدهامتان او یا یو حرف وو لکه صاد ، ن ، ق نو پدې کې اختلاف دی خو صحیح خبره داده چې نه صحیح کیږي . (عالمګیري)

⇦ که کوم آیت ډېر اوږد وي لکه د مداینې (هغه چې د مداینې بحث پکې راغلی دی) آیت او یا آیة الکرسي نو که هغه په دوه برخو وویشل شي په دوو رکعتونو کې وویل شي نو بیا هم صحیح کیږي (المحیط، منیة المصلی، عالمګیري)

⇦ تلاوت به په داسې ډول سره کوي چې حروف به په سمه توګه اداء کوي او کوښښ به کوي چې خپل ځان واوروي .

⇦ په فرضو کې قرائت صرف په اولو دوو رکعتونو کې دی او په سنتو کې ، نفلو کې او وترو کې په ټولو رکعتونو کې تلاوت دی .



### ۳. رکوع کول

⇦ رکوع کول هم فرض دي لږ تر لږه به دومره ښکته کيږي چې لاسونه يې زنګنونو ته ورسيږي (السراج الوهاج)

⇦ هغه کس چې په ملا باندې دومره ټيټ شوی وي چې په عادي حالت کې هم داسې ښکاره کيږي لکه ده چې رکوع کړې وي نو هغه به د رکوع په ځای کې خپل سر ښکته کوي چې معلومه شي چې ده رکوع وکوله . (عالمګيري)

⇦ د رکوع کولو وخت د تلاوت نه د فارغېدلو نه وروسته دی .

### ٤. سجده کول

⇦ اوله او دوهمه سجدې دواړه فرض دي .

⇦ د سجدې حد دادی چې پوزه او تندی به دواړه په زمکه کېښودل شي که دکوم عذر له امله يې يوازې تندی او يا يوازې پوزه په زمکه کېښودل نو صحيح ده او که څه عذر نه وو بيا مکروه ده .

⇦ که د پوزې او تندي په ځای يې غامبوری او يا زنه کېښوده نو بيا نه ده روا ځکه که چېرته عذر وي نو بيا د دسجدې په ځای اشاره وکوي او که عذر نه وي نو بيا د تندی او پوزه ولګوي .

- که په نرم شي باندې لکه نرم فرش، واښو ، واوره او یا بل دېته ورته شي یې سجده کوله که دده مخ په هغه شي باندې درېدلو نو صحیح ده او که ده څومره زور ورکولو هغه ښکته تلو بیا نه د ه صحیح .
- که غله (لکه غنم وربشې) په یو ځای پرته وه په هغې یې سجده کېښوده نو صحیح ده .
- که د ځای د تنګوالي له امله یې د بل مونځ کونکي په شا باندې سجده کېښوده چې هغه هم دده سره په یوه مانځه کې شریک وو صحیح ده او که د داسې چا په شا یې سجده کېښوده چې هغه مونځ نه کولو او یا یې مونځ کولو لکن له ده سره په یوه مانځه کې نه وو شریک نو بیا نه ده صحیح.
- که د چا په زنګون یې سجده کېښوده که عذر وو نو صحیح ده او که عذ نه وو بیا نه ده صحیح .
- که هغه ځای چې مونځ کونکي وربانديې سجده کېښوده تر هغه ځای څخه لږ لوړ وو چې په کوم ځای کې مونځ کونکي پښې ایښې دي نو که د یوې یا دوو خښتو په اندازه لوړ وو نو صحیح ده او که تردې زیات وو بیا نه ده صحیح. (عالمګیري)
- که په کوم ځای کې یې سجده کېښوده هلته یې څه تکلیف محسوس کړو لکه د ځای ګرم والی یا اغزي یا بل شی نو ددې ځای نه یې بېرته مخ

پورته کړو په بل ځای کې یې کېښوده نو پروا نه کوي او په هغه بل ځای کې کېښودل به هم بله سجده نه ګڼل کیږي د همدې سجدې پاتې برخه به بلل کیږي . (التتارخانیة)

## ٥. وروستنی قعده .

⇦ د التحیات لله د ویلو په اندازه باندې کېناستل هم فرض دي.

## ٦. په خپله خوښه مونځ ختمول

⇦ په کتابونو کې لدې نه د مونځ کونکي په فعل سره د وتلو نه تعبیر کوي.

په ځینې کتابونو کې دیته فرض نه دي ویل شوي لکه عینی د کنز شرح او ځیني نورو ورته فرض ویلي دي چې مونځ هغه وخت تکمیل کیږي چې مونځ کونکی ترینه پخپله ووزي او ختم یې کړي .

# د مانځه واجبات

⇦ وجوب په لغت کې لزوم ته وايي او د شريعت په اصطلاح کې (لکه ددې سلسلې په اول کتاب کې چې تېر شول) هغه عمل ته وايي چې په داسې دليل سره ثابت شوى وي چې په هغه کې شبه وي .

⇦ د واجبو حکم دادى چې کول يې ثواب دى نه کول يې ګناه ده که په مانځه کې قصداً پاتې شي د مانځه بېرته را ګرځول واجب دي او که په سهو سره پاتې شي د مانځه په آخر کې سجده سهو کول ضروري دي .

## ١. سورت فاتحه لوستل .

⇦ رسول الله ﷺ فرمايي : لا صلاة لمن لم يقرأ بفاتحة الکتاب يعني مونځ بغير د الحمد لله څخه نه مکمل کيږي .

٢. په دريو يا څلورو رکعتونو کې اول دوه د تلاوت لپاره خاص کول واجب دي .

⇦ که يې په دوو اولو کې تلاوت قصداً پرېښودو نو مونځ ورباندې را ګرځول واجب دي او که سهواً ورڅخه پاتې شو د مانځه په آخر کې به سجده سهوه کوي.

۳. الحمد لله او درى لنډ آيتونه او يا يو اوږد آيت او يا تردې زيات ورسره ضم كول واجب دي .

⇦ د اسورت او الحمد لله دواړه د فرضو په دوو اولو ركعتونو كې او دوترو ، سنتو او نفلو په ټولو ركعتونو كې واجب دي .

٤. تر سورت نه د الحمد لله وړاندې كول هم واجب دي .

⇦ كه قصداً يې سورت په الحمد لله باندې وړاندې كړو نو مونځ راګرځول وربانديې واجب دي او كه سهواً ترېنه داسې وشول نو د مانځه په آخر كې به سجده سهوه كوي .
⇦ كه چېرته يې سهواً په سورت شروع وكوله او الحمد لله ترېنه هېره شوه چې كله ور په زړه شوه نو بيا به الحمد لله ووايي او سورت به ورپسې كړي او سجده سهوه به وكوي . (محيط)
⇦ كه د فرضو په دوو اولو ركعتونو كې يې سورت وويلو او الحمد لله ورڅخه هېره وه نو په وروستنيو كې به دا الحمد لله نه راګرځوي.
⇦ او كه چېرته په اولو دوو ركعتونو كې ورڅخه سورت هېر شو نو په وروستنيو كې دې الحمد لله او سورت دواړه په زوره ووايي .

٥. الحمدلله په هر رکعت کې صرف يو ځل واجب ده .

⇦ که چېرته يې الحمد لله په کوم رکعت کې سر بله پسې (دوه ځله په يو ځای) وويله که قصداً وه نو مونځ به را ګرځوي او که سهواً وه نو سجده سهوه به کوي .

٦. ترتيب هم واجب دی .

⇦ په هغه شيانو کې چې هغه دوه دي لکه سجدې په يوه رکعت کې دوه دي پدې کې ترتيب واجب دی نو که اوله سجده يې وکوله او دوهمه ورڅخه پاتې شوه دوهم رکعت ته پاڅېدو او يوه سجده يې بيا د ټول مانځه په آخر کې وکوله نو که سهواً دا کار ترې وشو نو سجده سهوه به کوي او که قصداً يې وکولو مونځ را ګرځول وربانديې واجب دي .

⇦ او هغه شيان چې يو ځل دي لکه قيام رکوع وروستنۍ قعده د هغوی په مينځ کې ترتيب فرض دی که هريو له خپل ځای نه وښورول شي مونځ ورسره پاسديږي که قصداً وي او که سهواً .

⇦ همدارنګه که چا رکوع تر قيام وړاندې وکوله او يا يې آخري قعده د تشهد په اندازه وکوله بيا ورپه ياد شو چې دده نه کومه سجده پاتې ده د قعدې نه وروسته يې سجده وکوله نو

پدې صورتونو کې مونځ فاسد شو را ګرځول يې فرض دي .

## ۷. د رکوع نه وروسته مستقيم درېدل

⇦ سره ددې چې د امام ابي حنيفه رحمه الله په مذهب دا واجب نه دی لکن د ځينې علماوو له نظره دا هم واجب دی . (الظهيرية)

⇦ همدارنګه د دوو سجدو په مينځ کې په کېناستلو کې ارام کول يعني دومره کېناستل چې د مونځ کونکي ټول بدن او جامې له حرکت نه ودريږي دېته هم ځينې علماوو واجب ويلي دي.

## ۸. تعديل الارکان

⇦ ټول د مانځه ارکان په اطمنان سره کول او د هر رکن پوره حق داء کول دا هم واجب دي.

⇦ نو ددې امله که مونځ داسې زر زر وکول شي چې په ارکانو کې يې اندامونه تسکين نه کوي نو واجب په مانځه کې پاتې شول که په سهو سره وي سجده سهوه واجبه ده او که قصداً وي نو مونځ راګرځول واجب دي .

۹. اوله قعده .

⇦ د التحيات په اندازه باندې اوله قعده هم واجب ده .
⇦ دا هغه کېناستل دي چې کله مونځ درې رکعته وي او يا څلور رکعته وي نو چې کله دوه رکعته پوره شي نو مونځ کونکی د دوهم رکعت له آخري سجدې نه را پورته شي او کينې او التحيات لله تر تشهد پورې ووايي .

۱۰. التحيات لله ويل هم واجب دي .
۱۱. سجده په پوزه او تندي دواړو سره کول هم واجب دي . (مراقی الفلاح)
۱۲. په اوله قعده او دوهمه کې التحيات لله ويل هم واجب دي . (السراج الوهاج)
۱۳. کله چې په اوله قعده کې التحيات لله ختمه کړل شي نو بيا دريم رکعت ته زر پاڅېدل واجب دي حتی که دومره وخت پاتې شو چې په دومره وخت کې يو رکن اداء کېدلی شي نو که قصداً وو مونځ به را ګرځوي او که سهواً وو نو سجده سهوه به کوي . (مراقی الفلاح)
۱٤. په سلام ګرځولو کې د سلام لفظ هم واجب دی (کنز الدقائق/ مراقی الفلاح)
۱٥. په وترو کې دعا قنوت ويل هم واجب دي .
۱٦ . د اختر په مانځه کې تکبيرونه هم واجب دي .

۱۷. په جهري مونځونو کې په جهر او په خفيه مونځونو کې پټ قرائت واجب دی.

⇦ د امام لپاره د سحر، ماښام او ماسخوتن په مانځه کې د جمع په وخت په دوو ا ولو رکعتونو کې الحمد لله ا و سورت ويل په جهر سره واجب دي او د ماسپښين او مازيګر په مونځونو کې په پټه ويل واجب دي.

⇦ د اخترونو او جُمعې په مانځه کې هم په زوره تلاوت کول دي .

⇦ که څوک يوازې مونځ کوي که د هغه زړه غواړي هغه هم په جهري مونځونو کې تلاوت دومره په زوره کولی شي چې خپله يې واوري او دا غوره ده دومره په زوره به يې نه کوي لکه څومره په زوره يې چې ا مام کوي ځکه امام يې نورو خلکو ته هم ور آوروي او دی خو يوازې دی.

⇦ په تراويحو کې هم په زوره تلاوت کول واجب دي .

⇦ امام به قرائت دومره په زوره کوي څومره چې دی په عادي ډول سره کولی شي په ده باندې لازمه نه ده چې ځان په تکليف کړي .

⇦ دومره په زوره قرائت کول مکروه دي چې د خلکو ورته ضرورت نه وي او يا خلک ترې تنګيږي ځکه د په زوره تلاوت نه غرض دادی چې مقتديان يې واوري او په آيتونو کې فکر او تدبر وکوي ډېر تيز اواز نه يوازې چې ضرورت

ورته نه وي بلکه د تدبر لپاره مخل واقع کیږي .

⇦ په مانځه کې چې کوم اذکار دي هغه به مقتدي او امام پټ وایي صرف هغه الله اکبر چې د یو حالت نه بل حالت ته د انتقال لپاره وي هغه به امام ددې لپاره په زوره وایي چې خلکو ته معلومه شي چې امام د یو حالت نه بل حالت ته ځي .

⇦ که د ماښام یا ماسخوتن یا سحر مونځ قضاء شو او په شریکه سره یې قضائي را ګرځول کېده نو په جهر سره به تلاوت پکې کوي.

⇦ که د ماسپښین یا مازیګر مونځ قضایي د شپې راګرځول کېدو نو په زوره به تلاوت پکې نه کوي . (فتاوی قاضي خان)

⇦ که چېرته چا د سحر ، ماښام یا ماسخوتن مونځ یوازې کولو او بیا ورپسې بل چا اقتداء پداسې حالت کې وکوله چې ده الحمد لله او څه آیتونه هم ویلي وو نو له سر نه به الحمد لله په زوره ووایي او نور مونځ به مخکې بوزي . (البحر الرائق)

⇦ هغه نفل مونځ چې د ورځې یې کوي نو تلاوت به پټ پکې وایي او هغه نفلونه چې د شپې یې کوي د مونځ کونکي خوښه که په زوره یې وایي او که په پټه سره یې وایي (عالمګیري)

⇦ په زوره څه ته وایي او پټ څه ته وایي؟ د په زوره ویلو لږ تر لږه اندازه داده چې دده

سره يې بل څوک هم واوري او د پټ ويلو آخري اندازه داده چې دى يې پخپله واوري او داسې تلاوت به نه کوي چې دى يې هم وانه وري (المحيط)

## د مانځه سنتونه

⇦ سنت په مانځه کې هغه شيان دي چې پاتې شي هم سجده سهوه وربانديې نشته او په پاتې کېدلو يې مونځ هم نه پاسديږي لکن پاتې کېدل يې ښه کار نه دى.

1. د تکبير تحريمه سره لاسونه پورته کول د نارينه وو لپاره د غوږونو تر نرميو پورې ابهامې (بټې ګوتې) رسول او د زنانه وو لپاره ګوتې تر اوږو پورې رسول.
2. په تکبير تحريمه کې د پورته شويو لاسونو ګوتې داسې سره خپرول چې يو له بل سره به نه وي لګېدلې بلکه په عادي حالت به پاتې وي او بالکل به سره خپرې شوې هم نه وي.
3. د امام تکبير په زوره ويل .
4. سبحانک اللهم ويل .
5. اعوذ بالله ويل .
6. د هر رکعت په شروع کې بسم الله ويل .
7. د مقتدي لپاره خپل نيت د امام سره يو ځاى تړل.

8. په درېدلو کې د پښو په مینځ کې دڅلورو خلاصو ګوتو په اندازه باندې فاصله پرېښودل.
9. کله چې امام ولا الضالین ووایي آمین ویل (په پټه سره) .
10. د نارینه وو لپاره تر نو لاندې ښی لاس په چپ لاس باندې کېښودل او د زنانه وو لپاره په سینه کېښودل .
11. رکوع ته د تللو لپاره ا لله اکبر ویل .
12. په رکوع کې د سړي لپاره ګونډې په لاسونو په داسې حالت کې نیول چې ګوتې سره خلاصې وي او زنانه به خپلې ګوتې نه خلاصوي عادي به یې په زنګنونو کیږدي.
13. د رکوع په وخت کې د سړیو لپاره شا هموارول .
14. خپل سر د شا سره برابرول چې نه پورته وي او نه ښکته ځړېدلی وي .
15. د پورته کېدلو په وخت سمع الله لمن حمده ویل .
16. د رکوع نه وروسته قومه کول (نېغ درېدل)
17. په قومه کې ربنا (و) لک الحمد ویل.
18. د رکوع تسبیح دری ځله ویل (سبحان ربی العظیم)
19. سجدې ته د تللو لپاره الله اکبر ویل.

20. د سجدې لپاره اول زنګنونه بيا لاسونه او بيا مخ کېښودل.

21. د سجدې نه د پورته کېدلو په وخت کې اول مخ بيا لاسونه او بيا زنګنونه پورته کول.

22. سجده د دواړو لاسونو په مينځ کې کېښودل.

23. د سړي لپاره په سجده کې ګېډه له خپلو زنګنونو، لاسونه له خپلو څنګونو او له زمکې نه لرې ساتل او د ښځې لپاره دا ټول يو له بل سره سريښ کول .

24. د سجدې تسبيحات درې ځله ويل.

25. په کېناستلو کې د سړيو لپاره يوه پښه درول په بله کېناستل او د ښځو دواړه پښې يو طرف ته ويستل په يو څنګ کېناستل.

26. لاسونه په زنګنونو کېښودل .

27. د تشهد په وخت کې خپله ګوته پورته کول چې په نفي سره پورته کول شي (اشهد ان لا اله ...) او د اثبات سره کېښودله شي (الا الله ..) .

28. د تشهد نه وروسته درود ويل .

29. دهغه نه وروسته دعا ويل داسې دعا چې د قران د الفاظو نه يا د حديثو له الفاظو څخه وي .

30. په سلام کې ښي او چپ طرف ته مخ اړول .

31. په سلام کې نيت کول چې زه زما دې طرف خلکو ته ، پېرېانو ته ، ملائکو ته سلام اچوم

، امام به په دواړو سلامونو کې د خلکو نیت کوي او مقتدي به په هغه لوري کې د امام نیت کوي چې په کوم طرف کې یې وي او هغه کس چې په امام پسي شا ته مستقیم ولاړ وي هغه به په دواړو طرفونو کې د امام نیت ساتي چې دی په هغه هم سلام اچوي هغه کس چې یوازې مونځ کوي هغه به صرف د ملائکو نیت کوي .

32. خپل سلام د امام له سلام سره یو ځای کول .

33. د امام لپاره تر اول سلام نه دوهم لور ته د سلام اواز لږ ښکته کول .

34. له چا نه چې څه جمع تېره شوي وي د امام تر دواړو خواو ته سلام اړولو پورې انتظار کول .



# د مانځه ادبونه

- د قيام په حالت کې د سجدې ځای ته کتل، په رکوع کې پښو ته کتل، په سجده کې خپلې پوزې ته کتل، په کېناستلو کې خپلې سينې ته کتل، ښي طرف ته په سلام اړولو کې ښۍ اوږې ته کتل، چپ طرف ته په سلام اړولو کې چپې اوږې ته کتل.
- د ارګمي په وخت کې تر شوني حده پورې خوله پټول .
- د تکبير تحريمه په وخت کې خپل لاسونه تر لستوڼيو څخه را ويستل .
- تر خپلې وسې پورې ټوخی دفع کول.

# جمع (جماعت)

- جمع سنت موکد ده لکه په ټولو متونو کتابونو کې چې دي او په ځینې کتابونو کې ورته واجب هم ویل شوي دي.
- په هغه کسانو باندې ده چې عاقلین وي بالغین وي او ټول ازاد خلک وي او جومات ته د تلو نه څه تکلیف نه وي .
- هغه کس چې عذر یې وي جومات ته تلل وربانديې ضروري نه دي د مثال په ډول هغه کس چې بېمار وي، شل وي، پښې یې پرې وي، فلج وي ، جومات ته نشي تلی، ډېر زوړ وي ، ړوند وي او داسې نور .......
- که چېرته سخت باران وي نو هم جومات ته تلل ضروري نه دي همدارنګه چې سخته تیاره وي ډېر زیات یخ وي. (التبیین)
- همدارنګه هغه کس چې په سفر روان وي ډاریږي که په جمع ودریږي نو قافله تري ځې ، موټر ترینه ځي نو په هغه هم نه دي ضروري چې په جمع و دریږي.
- هغه جومات چې معلوم امام او موذن لري چې یو ځل پکې اذان او جمع وشي نو که دوهم ځل پکې جمع کیږي نو بل اذان به ورته نه کوي .

د امامت لائق

- چې څه کسان سرا راټول شي او جمع کول غواړي هغه کس به مانځه ته وړاندې کيږي چې د مانځه په احکامو تر ټولو نه ښه خبر وي او دومره تلاوت هم کولی شي څومره چې د مانځه د صحت لپاره ضروري وي .
- امامت به هغه کس کوي چې په ښکاره سره د لويو ګناهونو څخه ځان ساتي. (الکفاية)
- که داسې کس وو چې د مانځه په اړه يې ښه علم درلود لکن نور علوم يې نه وو زده نو بيا هم د امامت کولو لپاره مناسب دی .
- که موجوده کسان په علم کې سره برابر وو بيا به هغه کس امامت ته وړاندې کوي چې قرائت يې ښکلی وي داسې کس وي چې د تجويد د قوانينو مطابق تلاوت ښه کولی شي .
- که موجوده کسان پدې صفت کې هم سره برابر وو بيا به هغه کس امامت ته وړاندې کوي چې د دوی په نظر کوم ډېر تقوی دار او ډېر نېک انسان وي .
- که موجوده کسان په دې صفت کې هم ټول سره يو شان ښکاره کېدل نو بيا به هغه کس امامت ته وړاندې کړي چې کوم پکې مشر وي .
- که پدې کې هم برابر وو نو بيا چې کوم ډېر نېک خويه وي، بيا چې کوم د ښه نسب خاوند وي

، بیا چې کوم په شکل کې ښکلی وي ددې ټول کوښښ مطلب دادی چې امامت باید هغه کس وکوي چې د خلکو په نظر کې ځوک ډېر محترم وي او ډېر خلک په ده پسې په مانځه کولو کې دلچسپي ښکاره کړي .

⇦ که په کوم کور کې مېلمانه جمع کوي نو د کور مالک غوره دی چې امامت وکوي او که په مېلمنو کې د علاقې والي یا قاضي وي نو هغه غوره دی چې امامت وکوي .

⇦ هغه کس چې د جومات د امامت لپاره تعین کړل شوی وي امامت ته وړاندې کول تر هرچا وړاندې د هغه حق دی هرڅو که د جومات د امام نه لوی عالم جومات ته راشي نو د جومات موجوده امام غوره دی چې امامت وکوي او پورتني ټول صورتونه هغه وخت کتل کیږي چې پداسې ځای کې جمع کېږي چې هلته معین او معلوم امام نه وي .

⇦ که فاسق سړی مانځه ته وړاندې شوی وي مونځ پسې کیږي لکن د هر وخت لپاره به امام نه تعین کیږي که په مبتدع یا فاسق پسې ځوک مونځ وکوي د جمع ثواب ورته رسیږي لکن هغه د جمع مونځ چې په نېک انسان پسې وشي د هغه ثواب زیات دی.

⇦ که د بل مذهب کس مانځه ته وړاندې شوی وي مونځ پسې کیږي د مثال په توګه که شافعي مسلک کس مانځه ته وړاندې شوی وو نو حنفي

مونځ پسې کولی شي لکن چې د امام نه داسې څه نه وي شوي چې د حنفي مذهب له مخې په هغه باندې اودس ماتيږي د مثال په توګه هغه نجس چې د انسان د بدن څخه بغير د خاص اندام نه وزي لکه وينه او داسې نور د امام شافعي صاحب رحمه الله په مذهب اودس نه ماتوي نو که د امام کوم ځای وينې شي هغه مانځه ته بيا هم مخکې کيږي پدې صورت کې د حنفي مذهب له مخې د امام اودس مات دی د حنفي مونځ ورپسې نه کيږي داسې نور هم د مذهبونو په مينځ کې د اختلاف ځايونه شته لکه خوب ، په مانځه کې په زوره خندا او داسې نور ...

⇦ که څوک معذور وي او تيمم يې کړی وي هغه کسانو ته مونځ ورکولی شي چې هغوی اودسونه کړي وي . (الهداية)

⇦ که دوه کسان يو ډول معذورين وو د مثال په توګه د دواړو پوزې وينې شوې وې او وينه يې نه درېدله نو يو په بل پسې د دوی مونځ کيږي د هر وخت لپاره دواړه تازه اودسونه کوي او که عذر يې بدل وو نو بيا نه کيږي د مثال په ډول د يو کوم ځای وينې دی هغه وينه نه دريږي او بل ته د خالې بولو بيماري ده هغه نشي ساتلی ...

⇦ که چا په موزو باندې مسح کړي وي يا يې کوم ځای تړلی وي په هغه يې مسح کړي وي دهغه

کسانو امامت کولی شي چې هغوی پښې وینځلې وي .

⇦ هغه کس چې مونځ په کېناستو کوي او رکوع او سجده کوي د هغه کسانو امامت کولی شي چې هغوی په ولاړو مونځ کوي.

⇦ هغه کس چې د کوم عذر له امله رکوع او سجده نشي کولی دهغې لپاره اشاره کوي دهغه کسانو امامت نشي کولی چې هغوی رکوع او سجده کوي. (فتاوی قاضي خان)

⇦ هغه کس چې نفل کوي په هغه امام پسې اقتداء کولی شي چې دهغه د فرضو نیت تړلی وي د مثال په توګه چا د ماسخوتن مونځ کړی دی بل ځای ته لاړو هلته امام خلکو ته د ماسخوتن مونځ ورکولو نو دی پسې د نفلو په نیت اقتداء کولی شي همدرانګه د ماسپښین په وخت کې.

⇦ مقیم په مسافر پسې اقتداء کولی شي چې کله هغه په څلور رکعتي مونځ کې دوه رکعته پوره کړي هغه به په سلام وګرځوي دهغه نه وروسته به مقیم خپل دوه رکعته نور وکوي .

⇦ مسافر چې په مقیم پسې په څلور رکعتي مونځ کې اقتداء وکوي نو د امام د متابعت لپاره به پوره څلور رکعته کوي .

⇦ صرف ښځې که مونځ په جمع کوي او ښځه یې ا مامت کوي نو دا مکروه دی لکن بیا یې هم چې کوي نو امام به یې په مینځ کې دریږي.

⇦ د ښځو لپاره تر داسې جمع نه چې ښځه يې امامت کوي يوازې مونځ کول غوره دي.

⇦ د ښځو امامت د ښځو لپاره صرف په جنازه کې مکروه نه دی .

⇦ که کوم فاسق سړي په زور امامت کولو او په خاصه توګه د جُمعې مانځه ته مخکې کېدلو نو خلک يې په منع کولو نه وو قادر نو دده د فسق له امله به د جُمعې مونځ نه پرېږدي او مونځ به پسې کوي او که په نورو مونځونو کې يې په زور امامت کولو نو په ده پسې به اقتداء نه کوي بلکه بل جومات ته به د تلو کوښښ وکوي .

⇦ که څوک د يو جومات امامت کوي او دهغه جومات د خلکو دی نه وي خوښ نو که دا نه خوښه ددې امله وه چې په ده کې کوم فساد وو او يا په محله کې نور خلک دده نه د امامت ډېر لائق وو نو بيا دده امامت مکروه دی او که ددې نه خوښې وجه په ده کې نه وه نو بيا يې امامت نه دی مکروه.

⇦ که يو کس د خلکو تر يو وخت پورې ا مامت وکولو او بيا يې دوی ته وويل چې زه خو مسلمان نه يم نو په خلکو باندې د مانځه را ګرځول نشته مونځونه شوي دي او هغه کس به را ونيول شي د اسلام په کلمه ويلو به مجبور کړل شي او ښه سزا به ورکړله شي .

⇦ همدارنګه که امام وویل چې ماتاسې ته دومره وخت بې اودسه مونځ درکړی دی نو دده دې خبرو ته به هېڅ اعتبار نه ورکول کیږي لکن د تقوی خبره داد که کولی شي مونځونه دې را وګرځوي. (عالمګیري)

⇦ همدارنګه که د بلې خوا نه ښکاره شوه چې دا امام کافر وو، لېونی وو، خنثی مشکل وو ، بې اودسه یې مونځ کولو نو د مونځونو را ګرځول وربانديې ضروري نه دي که څوک یې د تقوی له مخې راګرځولی شي نو ښه خبره ده (التبیین)

⇦ که د امام او مقتدي په مینځ کې لویه لاره وي چې هلته موټر و غیره داسې وسائل تېرېدلی شي نو د هغه ځای نه اقتداء پسې نه کیږي او که تنګه لاره وه چې صرف مجرد خلک وربانديې تېرېدلی شول نو بیا اقتداء پسې کیږي. (فتاوای قاضي خان)

⇦ او که پدې لاره کې هم صفونه ودرېدل بیا دهغې لارې نه وروسته صفونه ودرېدل نو اقتداء نه منع کوي.

⇦ که په لاره کې جمع کېده نو د امام او د اول صف او یا د نورو صفونو په مینځ کې به دومره فاصله نه پرېږدي چې هلته نقلیه وسائل تېر شي او که دومره فاصله پاتې شوه نو بیا د وروسته صفونو اقتداء په امام پسې نه صحیح کیږي .

⇦ همدارنګه که د امام او مقتدي په مینځ کې لوی سیند تېر شوی وو چې په هغې کې کښتۍ ګرځېدلې نو اقتداء ورپسې نه کیږي او که دومره لوی سیند نه وو بلکه لږ اوبه وې نو بیا اقتداء صحیح ده .

⇦ که په دې اوبو باندې پُل ایښی وو او په هغه باندې هم د خلکو صفونه ولاړ وو نو بیا که د اوبو نه هغه بل طرف ته صفونه ولاړ وو نو اقتداء نه منع کوي درې کسان چې څنګ په څنګ سره ودرېږي ددې حکم د صف دی نو چې همداسې درې درې کسان په پله باندې ولاړو وو نو ددې حکم د صفونو دی که صرف یو کس ولاړ وي بالاجماع دا صف نه دی که دوه دوه کسان ولاړ وي نو پدې کې اختلاف دی لکن درې کسان بالاجماع د صف حکم لري.

⇦ همدارنګه که د امام او مقتدې په مینځ کې یو مکمل صف د ښځو وو بیا هم اقتداء ورپسې نه صحیح کیږي .

⇦ که چېرته په امام پسې ښځو هم مونځ کولو او پوره یو صف یې جوړ کړو په امام پسې یې اقتداء وکوله نو ددې ښځو د صف نه وروسته چې څومره خلک پدې امام پسې اقتداء کوي نه ورپسې کیږي او که مکمل صف نه وو یو څو ښځې ولاړې وې پدې ښځو پسې شا ته چې کوم کسان ولاړ وي د صفونو تر آخره سره پورې ددې کسانو مونځ نه کیږي د مثال په توګه په یو ځای کې

دری ښځې ولاړې وي پدې پسې په بل صف کې چې
کوم دری سړي دي د هغوی مونځ پدې امام پسې
نه دی شوی همدارنګه په ورپسې صف کې او داسې
تر آخره پورې (المحيط)

## د امام سره د درېدلو ځای

⇦ کله چې امام یو کس ته مونځ ورکوي نو هغه به
په ده پسې شا ته نه بلکه ښي طرف ته درېږي .
⇦ که دا یو کس د امام چپ طرف ته هم ودرېږي نو
صحیح دی لکن ښه کار نه دی (محيط السرخسي)
⇦ که دوه کسان وو او یا تر دوه زیات وو بیا
به په امام پسې شا ته درېږي .
که یو نارینه وو او یوه ښځه وه نو نارینه به
یې ښي طرف ته ودرېږي او ښځه به په امام پسې
شا ته ودرېږي .
⇦ که چېرته دوه سړي او یوه ښځه وه نو دوه سړي
به پسې شا ته ودرېږي او هغه ښځه به د دوو
کسانو شاته په دوهم صف کې ودرېږي .
⇦ که یو کس مقتدي وو د امام ښي طرف ته ودرېدو
وروسته بل کس راغلو نو هغه به مقتدي د امام
د څنګ نه را کش کړي او په ا مام پسې به
شاته ودرېږي هغه اول مقتدي به هم له ځان
سره ودروي. ( التتارخانية/ الميحط)
⇦ مقتدیان به تر خپلې وسې پورې کوښښ کوي چې
څومره کېدلی شي خپل صفونه دې برابر کړي

اوړې به يو له بل سره برابرې کړې او پښې به هم يو له بل سره په يوه کرښه کيږدي په صفونو کې چې خالي ځايونه وي هغه به ډک کړي ترڅو چې مخکنی صف ډک نه وي نو په ورپسې صف کې به څوک نه دريږي که څوک برابر نه وي او امام ورته ووايي چې صف برابر کړئ نو کراهيت پکې نشته امام کولی شي مقتديانو ته ووايي چې صفونه برابر کړئ . ( البحر الرائق)

⇦ په جمع کې تر ټولو غوره ځای هغه دی چې اما ته نيږدي وي بيا په نېږدې ځايونو کې هغه ځای غوره دی چې د امام ښي لوري ته وي.

⇦ که په مانځه کې ښځه د کوم سړي سره په خوا کې ودريږي نو د سړي مونځ ماتيږي ددې مانځه د ماتېدلو لپاره يو څو شرطونه دي:

الف : دا ښځه به لويه وي که ما شومه وه نو مونځ نه فاسديږي .

ب : مونځ به د رکوع او سجدې واله مونځ وي .

ج : دواړه به په يوه مانځه کې شريکان وي (په يوه امام پسې به يې اقتداء کړې وي)

د : دواړه په په يوه ځای کې ولاړ وي که سړی په لوړه ولاړ او ښځه په ښکته ځای کې وه نو مونځ نه فاسديږي.

ه : د دواړو په مينځ کې به په کوم شي سره پرده نه وي راغلې که په مينځ کې يې د جومات ستنه يا بل شی پرده وو بيا مونځ نه فاسديږي.

و: دا ښځه به داسې څوک وي چې مونځ یې صحیح وي د مثال په ډول که لېونی د چا سره په مانځه کې څنګ ته ودرېده نو د سړي مونځ نه فاسدیږي .

ز : چې په یوه رکن کې سره څنګ په څنګ وي نو مونځ فاسدیږي یعني که یوه ښځه راغله قیام یې د یو کس په خوا کې وکولو ، رکوع یې د بل کس په خوا کې او سجده یې د بل کس په خوا کې وکوله نو د ټولو کسانو مونځونه یې فاسد کړل.

⇦ ښځه که د سړیو په مینځ کې په مانځه ودریږي نو د دریو کسانو مونځ فاسدوي هغه چې ښي طرف ته ، چپ طرف ته او شا ته پسې ولاړ وي .

⇦ که دوه ښځې څنګ په څنګ په مانځه کې د سړیو په مینځ کې و درېدې نود څلورو کسانو مونځونه فاسدوي هغه چې د دوی ښي طرف ته وي او هغه چې چپ طرف ته وي او دوه هغه کسان چې په ورپسې صف کې په دوی پسې ولاړ وي. (التتارخانیة)

## مسبوق (هغه کس چې د جمع څه مونځ ورڅخه تېر شوی وي)

- ⇦ څوک چې پداسې حالت کې جمع ته راشي چې یو څه مونځ ترینه تېر شوی وي هغه کس ته مسبوق وایي.
- ⇦ مسبوق چې کله په داسې حالت کې راشي چې امام په زوره تلاوت شروع کړی وي نو اقتداء به وکوي او د امام سره به په مانځه کې شریک شي سبحانک اللهم به نه وایي لکن کله چې د امام د سلام ګرځولو نه وروسته پاتې مانځه ته پاځیږي بیا به سبحانک اللهم ووایي. (فتاوی قاضي خان، الظهیریة، عالمګیري)
- ⇦ که امام په رکوع یا سجده کې وو د مسبوق یقین وو که زه پسې رکوع او سجدې ته ورشم نو امام په رکوع او سجده کې ګیر کولی شم نو نیت به وکوي رکوع او یا سجدې ته به پسې ورشي او که دا یقین یې نه وو نو بیا د صبر وکوي چې امام له هغه رکن نه فارغ شي بیا به پسې یوځای شي.
- ⇦ که مسبوق په داسې حالت کې راغلو چې امام په التحیات کې ناست وو نو سبحانک اللهم به پریږدي نیت به وتړي تکبیر تحریمه به ووایي او د ښکته کېناستلو لپاره به الله اکبر ووایي او راساً به دی هم التحیات ته کیني.

⇦ کله چې امام سلام وګرځوي نو سم د لاسه به مسبوق د پاتې مانځه کولو ته نه پاڅيږي بلکه تر هغه وخته به صبر کوي چې امام دواړو طرفونو ته سلام وګرځوي بيا به مسبوق پاڅيږي دده څخه تېر شوی مونځ به وکوي ځکه کېدای شي په امام باندې سجده سهوه واجبه شوې وې او د يو سلام د ګرځولو نه وروسته هغه سجده سهوه کول وغواړي.

⇦ کله چې امام په آخري قعده کې کيني نو امام به د تشهد نه وروسته درود او دعا ويل غواړي مسبوق (هغه کس چې يو رکعت يا څه زيات مونځ ترېنه تېر شوي وي) هغه به ورو التحيات وائي ترڅو چې امام دعا ختموي نو دده به التحيات ختمه شي او تر تشهد به وروسته نور نه وايي ځکه د مسبوق لپاره دا قعده آخره نه ده. (فتاوای قاضي خان/ فتح القدير)

⇦ که د امام د سلام نه وړاندې يې په سهو سره سلام وګرځولو نو سجده سهوه ورباندې نشته او که د امام د فارغ کېدلو نه وروسته يې په سهو سره سلام وګرځولو بيا به سجده سهوه کوي.

⇦ که يې دا ګمان وو چې د امام د سلام سره سلام ګرځول ضروري دي نو دا سلام په سهو سره نه دی قصداً دی او غلط دی نو مونځ يې فاسد شو له سر نه به خپل مونځ وکوي .

⇦ که د ماښام په مانځه کې دوه رکعتونه ځنې تېر شي صرف یو رکعت را ګیر کړي نو چې کله امام سلام وګرځوي دی به پاځیږي پدې رکعت کې به الحمد للهووايي او سورت به هم پسې ووايي دا رکعت به پوره کړي او چې له دوهمې سجدې نه را پاځیږي نو بیا به کیني التحیات لله به تر تشهد پورې ووايي بیا به پاځیږي او بل رکعت به هم په همدې ډول وکوي که چېرته یې په دې رکعتونو کې تلاوت ونه کولو مونځ یې بېرته را ګرځول غواړي نو دا درې رکعته به یې په دریو کېناستلو سره شي یو ځل د امام سره ناست وو او دوه ځله به تر هغه وروسته کیني .

⇦ که په څلور رکعتي مانځه کې یې یو رکعت را ګیر کړو نو چې کله امام سلام وګرځوي دی به پاځیږي یو رکعت به وکوي الحمد لله او سورت به پکې ووايي ددې رکعت نه وروسته به کیني التحیات لله به ووايي بیا به پاځیږي یو رکعت به وکوي سورت به پکې هم ووايي لکن ددېنه وروسته به نه کیني بل رکعت به وکوي پدې رکعت کې سورت ویل لازمي نه دي بیا به کیني او مونځ به ختم کړي سلام به وګرځوي .

⇦ که چېرته امام د سلام نه وروسته سجده سهوه وکوله نو مسبوق به هم سجده ورسره کوي او چې دوهم ځلې سلام وګرځوي نو بیا به مسبوق پاځیږي او پاتې مونځ به پوره کړي.

# هغه شیان چې مونځ فاسدوي

## خبرې کول

⇦ په مانځه کې خبرې کول اګر که یو لفظ هم وي ، یوه کلمه وي او که یوه جمله وي که قصداً وي که سهواً وي په هر صورت مونځ ماتوي لکن چې لږ تر لږه دومره وي چې انسان یې خپله واوري او که صرف د شونډو په ښورولو سره یې څه وویل چې ده پخپله هم وانه آورېدل نو بیا مونځ نه فاسدوي (عالمګیري)

⇦ که څوک و پرنجېدل مونځ کونکي ورته په مانځه کې وویل یرحمک الله مونځ ئې فاسد دی که قصداً یې ویلي وو او که ترینه هېر وو چې دی په مانځه کې دی.

⇦ هغه کس چې په مانځه کې وپرنجیږي هغه به الحمد لله هم نه وایي مکروه دی مونځ وربانديې نه ماتیږي ځکه دی پدې سره د چا ځواب نه کوي لکن بیا هم د مانځه له اذکارو څخه نه دی نو مکروه دی ... مونځ کونکی که و پرنجیږي پټه خوله به پاتې کیږي او کله یې چې سلام وګرځولو که بیا یې وویل الحمد لله نو ښه خبره ده .

⇦ هر هغه کلمې ویل چې مطلب وربانديې د چا ځواب ویل وي مونځ ماتوي د مثال په ډول چې څه ښه

شى واوري يا وويني سبحان الله ووايي ، څه بد خبر واوري انا لله و انا اليه راجعون ووايي او داسې نور دا ټول مونځ ماتوي .

⇦ په همدې ډول که انسان په مانځه کې خوب يوسي ويده شي او په خوب کې څه ووايي نو بيا هم مونځ مات دى. (المحيط)

## سلام اچول او يا يې ځواب ورکول او يا بې وخته سلام ګرځول .

⇦ که يې په چا سلام اچول غوښتل او ويې ويل السلام .. بيا ور په ياد شو چې دى په مانځه کې دى نو بيا يې خوله بنده کړي بيا يې هم مونځ مات دى له سر نه دې وکوي. (المحيط)

⇦ که په مانځه کې يې چاته د خبرې ځواب د سر په ښورولو سره ورکړو نو دا مکروه دى مونځ يې فاسد نه دى. (عالمګيري)

⇦ د مانځه په مينځ کې يې که سلام ددې امله وګرځولو چې دى په اوله قعده ناست وو ده فکر کاوه چې دا مې دوهمه قعده ده مونځ مې ختم شو نو د سلام ګرځولو نه وروسته چې زر ور په ياد شو چې مونځ مې لا پاتې نو بېرته به پاتې پاتې مونځ به پوره کړي او په آخر کې به د سهو سجده وکوي .

⇦ که د ماسخوتن په مانځه کې يې د دوو رکعتونو څخه وروست سلام ددې امله وګرځولو چې ده فکر

کاوه زه تراویح کوم یا د مقیم فکر نه وو ددې امله یې سلام وګرځولو چې دده په فکر کې دی مسافر وو او یا د ماسپښین په مانځه کې یې ددې امله پس د دوو رکعتونو څخه سلام وګرځولو چې ده فکر کاوه زه سنت کوم نو پدې ټولو صورتونو کې مونځ مات شو بېرته به له سر نه خپل مونځ کوي. ( عالمګیري)

## خوراک کول

خوراک کول که لږ وي که ډېر چې خولې ته یې کړي مونځ ماتوي او که د غاښونو په مینځ کې څه شی وو چې د دال د وړې دانې څخه کم وو نو مونځ مکروه کوي او که تر هغه زیات وو نو مونځ ماتوي .

څښاک کول .

لکه خوراک کول داسې څښاک کول هم که لږ وي او که ډېر مونځ فاسدوي که په هر صورت کې وي .

## په زوره ژړا کول:

- که د کوم غم او درد له امله وو مونځ ماتوي او که د الله ① له وېرې څخه وو یا په آیتونو کې د جنت او دوزخ د ذکر له امله وو نو بیا مونځ نه ماتوي .

## د عذر لرې کېدل

- که د مانځه لپاره یې د ابو د نشت والي لپاره تیمم وهلی وو نو چې اوبه ووینې مونځ یې ماتیږي مونځ به پریږدي اودس به وکوي بیا به یې له سر نه را وګرځوي.
- هغه کس چې د جامې د نشت والي له امله لوڅ په مانځه ولاړ وي چا ورته جامه ورکړه مونځ یې ماتیږي هغه جامه په واغوندي مونځ به بیا وکوي .
- هغه کس چې رکوع او سجده یې په اشاره سره کول اوس په مانځه کې جوړ شو په رکوع او سجده قادر شو نو مونځ یې مات شو له سر نه به یې وکوي .

د وخت تېرېدل

⇦ د مانځه وخت تېرېدل د مثال په توګه د سحر په مانځه کې وربانديې لمر را وختلو يا د اختر په مانځه کې وربانديې لمر زوال وکولو مونځ ماتيږي .

بې هوښه کېدل.

⇦ بې هوښه کېدل يا وربانديې د لېونتوب دوره راتلل مونځ ماتوي چې کله را په حال کې شي مونځ به له سر نه وکوي .

په جامه يا ځان پورې نجاست لګېدل.

⇦ په جامو پورې نجاست لګېدل هم مونځ ماتوي که د زمکې د خوا نه وي يا که د بلې خوا نه په جامه پورې نجاست ولګيږي او جامه نجسه شي مونځ ورسره ماتيږي .

عورت ښکاره کېدل

⇦ همدارنګه په مانځه کې جامه ترينه غورځېدل او عورت يې ښکاره کېدل هم مونځ ماتوي .

په مانځه کې تلل او قدمونه اخستل هم مونځ ماتوي

که په مانځه کې یې قدمونه اخستل شروع کړل که د دوو صفونو په مینځ کې د فاصلې په اندازه لاړو نو مونځ یې نه دی مات او که تردې زیات لاړو نو مونځ مات دی. (فتاوی قاضي خان)

## عمل کثیر

⇦ عمل کثیر کول هم مونځ ماتوي د عمل کثیر لپاره مختلف تعریفونه دي یا دا چې د هغه په کولو کې دوو لاسونو ته اړتیا وي او یا عمل کثیر هغه دی چې خپله مونځ کونکې ته ډېر ښکاره شي.

د قبلې نه خپله سينه ګرځول.

⇦ له قبلې څخه داسې تاوېدل چې سينه له قبلې څخه واوړي نو دا هم مونځ ماتوي او که صرف مخ يې تر قبله واوښت او زر يې بېرته قبلې ته کړو نو دا مکروه دی او مونځ نه ماتوي او که يوازې مخ هم تر ډېره وخته پورې له قبلې نه آوښتی وو نو دا هم مونځ ماتوي.

⇦ که بل څوک راغلل مونځ کونکی يې د مانځه په حالت کې له يو ځای نه پورته کړو په بل ځای کې يې کېښودو او دهغه مخ له قبلې نه ونه ګرځېدو مونځ يې نه دی مات او که د زمکې نه يې پورته کړو په کومه سپرلۍ يې کېښودو مونځ يې مات دی.

⇦ که په جمع کې تر امام وړاندې شو مونځ يې فاسد دی. (فتاوی قاضي خان)

⇦ که په دښته کې چا مونځ کول او د خپل ځای نه يې قدمونه واخيستل نو څلور طرفونو ته د يوې سجدې د ځای په اندازه باندې مونځ نه ماتوي تردې چې زيات شي مونځ ماتيږي.

⇦ په مانځه کې چې خارجي کلمات ونه وايي او يا بل څه د مانځه ماتونکی کار پکې ونه کوي د مضرو حشراتو د مار او لړم وژل مونځ نه ماتوي اګر که په هغه پسې قدمونه هم ور

واخلي اګر که هغه ډېر کار وغواړي بيا هم مونځ ورسره نه ماتيږي. (الهداية)

⇦ هغه مضر شی چې دې ترینه ډاریدو چې ده ته به ضرر ورسوي وژل یې روا دي او هغه چې دده څخه لرې وي او دده لوري ته نه وي ور روان دي په مانځه کې د هغه وژل مکروه دي .

## د مانځه مکروهات

هغه شيان چې په مانځه کې يې کول مکروه دي په لاندې ډول دي

1. قصداً د سنتو يا واجبو پرېښودل .
2. په خپله جامه يا بدن باندې لوبې کول .
3. د کاڼو اړول را اړول (که د سجدې لپاره د ځای د برابرولو په موخه يې کاڼي يوځل دوه ځله واړول نو خير دی)
4. د ګوتو تکونه ويستل
5. ګوتې يو په بل کې سره ورکول چې د دواړو لاسونو ګوتې سره ورکړي او جال ترې جوړ کړي.
6. په تشي باندې لاسونه کېښودل.
7. شکته پورته او يا طرفونو ته کتل چې غاړه ورسره تاو کړي.
8. په قعده کې دواړه پښې درول او په هغې کېناستل.
9. په سجده کې لاسونه په زمکه باندې هموارول .

10. لستوني ډېر را پورته کول .
11. د قميص په آغوستلو باندې د قدرت سره سره يوازې په پرتوګ کې مونځ کول (دا په هغه صورت کې چې عورت پټ وي او که عورت ښکاره کيږي نو بيا خو مونځ نه کيږي)
12. چاته د کومې خبرې او يا سلام ځواب په اشاره سره ورکول.
13. بغير د عذر نه په مانځه کې په څلورو زنګنونو کېناستل (پلترۍ وهل)
14. خپل ويښته غوټه کول.
15. په سر باندې داسې دستمال يا بل شی تړل چې د سر پورتنۍ برخه لوڅه پاتې شي.
16. خپله جامه په ځان پورې ټوله را نيول لکه څادر يا داسې بل شی .
17. په جامه کې ځان داسې نغښتل چې د ضرورت په وخت کې خپل لاس ترېنه په تکليف را وباسي .
18. دوهم رکعت په اول رکعت باندې اوږدول .
19. يو سورت دوه ځلې په هغه مانځه کې ويل چې يو نيت ورته شوی وي .
20. په دوهم رکعت کې هغه سورت ويل چې په مخکني رکعت کې يې دديېنه وروسته ويلی وي د مثال په ډول چې په يو کې يې لايلف قريش ووايې نو په بل کې الم ترکيف ويل مکروه دي .

21. خوشبويي بوی کول که خپله يې د جامې نه بوی وربانديې لګيږي دا نه ده مکروه لکن چې پوزې ته يې نيږدې کوي دا مکروه ده .
22. ځان ته يوځل دوه ځله پکه وهل او که ډېر شي نو بيا مونځ ماتوي .
23. په سجده کې د لاس او پښې ګوتې د قبلې د لورې نه ګرځول .
24. په رکوع کې لاسونه په زنګنونو باندې نه کېښودل .
25. آسويلي ويستل .
26. بغير د ضرورت نه سترګې پټول .
27. په خوله کې کوم شی نيول .
28. د پټکي په وله باندې يا په خولۍ باندې سجده کول .
29. بغير د عذر نه په سجده کې صرف تندی لګول .
30. بغير د عذر نه په لاره کې مونځ کول .
31. په حمام کې مونځ کول همدارنګه په هديره کې مونځ کول .
32. د چا په زمکه کې دهغه د اجازې نه بغير مونځ کول .
33. نجاست ته نيږدې مونځ کول .
34. په داسې حالت کې مونځ کول چې اودس يې تنګ وي (د قضاء حاجت ضرورت يې وي)

35. بغیر د ضرورت نه په داسې ځای کې مونځ کول چې هلته سخت باد وي .

36. پداسې جامو کې مونځ کول چې دی پکې د چا محترم انسان په مخ کې نه حاضریږي مکروه دي .

37. په لوڅ سر مونځ کول هم مکروه دي که د عاجزي په نیت نه وو .

38. پداسې حالت کې مونځ کول مکروه دي چې خوراک حاضر وي او دی وږی وي .

39. په مانځه کې په لاس او په ګوتو باندې د تسبیحاتو شمارل هم مکروه د ي .

40. پداسې ځای کې مونځ مکروه دی چې هلته داسې څه شی وي چې دده ذهن مشغول کوي .

41. چې په مخکې صف کې خالي ځای وي په وروستني صف کې مونځ کول مکروه دي .

42. امام چې په محراب کې د ننه دریږي دا هم مکروه دي .

43. د مانځه لپاره داسې جامه آغوستل چې د ژوندیو شیانو عکسونه ورباندې وي دا هم مکروه دي .

44. پداسې ځای کې هم مونځ مکروه دی چې هلته تصویرونه لګېدلي وي .

45. که تصویر وړوکی وي یا یې سر پرې شوی وي یا د داسې شي تصویر وي چې هغه ژوندی نه وي نو مکروه نه دی .

46. اور ته مخامخ مونځ کول هم مکروه دي .

47. د مانځه لپاره بغیر د ضرورت نه صرف یو سورت خاص کول چې بل به پکې نه وایي دا هم مکروه دي او که ضرورت یې وو یعني نور یې یاد نه وو نو بیا مکروه نه دی .

48. که په داسې ځای کې مونځ کوي چې هلته خلک تیریږي باید مخې ته څه شی کیږدي بغیر د داسې شي نه مونځ کول هم مکروه دي.

49. تندی چې په خاوره باندې سپېره شي پاکول یې مکروه نه دي لکن پرېښودل یې ښه دي.

50. د صفونو شا ته یوازې درېدل هم مکروه دي .

51. د صفونو په مینځ کې درېدل او د امام د مانځه نه بغیر بل مونځ کول هم مکروه دي .

52. نارې تف کول یا بل شی له خولې نه غورځول هم مکروه دي .

# د قضائي مانځه را ګرځول

- هر مونځ چې تر خپل وخت د هر ډول عذر له امله پاتې شي قضا يې راګرځول لازم دي که قصداً پاتې شي که هېر شي او که انسان ويده شي او که په بله څه وجه مونځ پاتې شي قضاء يې راګرځول ضروري دي .
- د فرضو قضاء را ګرځول هم فرض د واجبو واجب او د سنتو سنت ده (عالمګيري)
- د قضاء را ګرځولو لپاره خاص وخت نشته صرف د لمر ختلو په وخت ، په غرمه کې او د لمر لوېدلو په وخت به يې نه راګرځوي . (عالمګيري)
- په قضايي مونځونو کې ترتيب لازم دی د مثال په ډول که د چا نه د يوې ورځې ټول مونځونه قضاء شول نو اول به د سحر بيا د ماسپښين بيا د مازيګر په همدې ترتيب قضائي را ګرځوي .
- همدارنګه په قضائي او دا موجوده وخت په مانځه کې هم ترتيب لازم دی چې قضائي مونځ ورته ياد وي ترڅو يې چې هغه نه وي کړی د وخت مونځ به نه کوي صرف په هغه صورت کې د وخت مونځ کيږي که وخت تنګ وو ډارېدو که اول قضائي مونځ وکوم نو د وخت مونځ راڅخه قضاء کيږي او يا ورڅخه هېر شوی وو وختي مونځ يې

وکولو نو د مانځه نه وروسته ور په یاد شو چې په ما قضايي مونځ پاتې وو او يا قضايي مونځونه تر شپږو څخه زيات وو .

⇦ که قضائي مونځ وربانديې پاتې وو او ده نفلي مونځ کولو او قضايي مونځ يې په ياد هم وو نفل يې صحيح کيږي ځکه ترتيب په فرضي مونځونو کې دی په قضايي او نفلي کې نشته .

⇦ که د چا نه د سحر مونځ قضاء شي او د ماسپښين په وخت کې ورته ياد دی چې دده نه د سحر مونځ قضاء وو نو اول به د سحر د مانځه قضايي وکوي بيا به د ماسپښين مونځ وکوي که د ماسپښين مونځ يې وکولو نه دی صحيح .

⇦ که د ماسپښين د مانځه په مينځ کې ورته شک شو چې آيا ده د سحر مونځ کړی وو کنه او ټول مونځ يې په همدې شک کې پای ته ورسولو او د مانځه د ختمېدلو نه وروسته يې يقين شو چې د سحر مونځ يې نه وو کړی نو د سحر مونځ به قضائي وکړي بيا به د ماسپښين مونځ دوهم ځلي وکوي .

⇦ که په يو مانځه کې ولاړ وي او ور په ياد شي چې تېر مونځ يې نه وو کړی نو دا مونځ يې نه صحيح کيږي د مثال په ډول د ماسپښين په مانځه کې د سحر مونځ ور په ياد شو نو د ماسپښين مونځ به همداسې نه پرېږدي بلکه دوه رکعته به يې پوره کړي او که په دريم رکعت کې وو نو څلور رکعته به يې پوره کړي دا به

دده لپاره نفل شي بیا به اول د تېر مانځه قضاء را وګرځوي او دا مونځ به بیا وکوي.

⇦ که د جُمعې د مانځه نه وړاندې ور په یاد شول چې ده خود سحر مونځ نه دی کړی نو د سحر مونځ د وکوي او که د جُمعې مونځ ورڅخه تېر شو نو بیا به د ماسپښین مونځ وکوي (امام ابو حنیفه او امام ابو یوسف رحمهما الله) او که چېرته دی ډاریدو که دی د سحر په مانځه مصروف شي نو د ماسپښین وخت ورڅخه تېریږي نو بیا به د امام سره د جُمعې مونځ وکوي .

⇦ کله چې وخت تنګ شي نو ترتیب له مینځه ځي د مثال په توګه که چا د ماسخوتن مونځ ونه کولو نو د سحر د مانځه څخه به یې وړاندې کوي لکن که دده ګمان وو چې که زه د ماسخوتن مونځ اوس کوم نو د سحر د مانځه د پوره کولو څخه وړاندې به نمر را وخیژي نو بیا د د سحر مونځ وکوي او چې کله نمر را پورته شي بیا به د ماسخوتن مونځ را وګرځوي. (التبیین/ عالمګیري)

⇦ لکن که د مانځه د کولو نه وروسته ښکاره شوه چې لمر ختل تر اوسه لرې دي وخت نور هم شته نو د سحر مونځ یې فاسد شو اوس به بیا ګوري که دواړه مونځونه پکې ځائیږي نو اول به د ماسخوتن قضائي را وګرځوي بیا به د سحر مونځ وکوي او که صرف د سحر مونځ پکې ځائیدو نو بیا به صرف د سحر مونځ وکوي او که بیا

ښکاره شوه چې تر اوسه وخت ډېر دی بیا یې هم د سحر مونځ فاسدیږي او که د ماسخوتن د مانځه په قضائي راګرځولو مصروف شو هغه یې پوره کړی نه وو چې لمر را وختلو نو اوس ښکاره شوه چې وخت نه وو نو د سحر مونځ یې چې د ماسوختن له قضایي څخه مخکې کړی دی صحیح دی را ګرځول یې ضروري نه دي په همدې توګه دی د سحر مونځ چې د ماسپښین په وخت کې یې قضائي را ګرځول غواړي .

⇦ کله چې کوم مونځ قضاء شي ترڅو چې د مونځ کونکي څخه هېر وي ټول کړي مونځونه یې صحیح دي لکن چې کله ور په یاد شي نو بیا ترڅو چې ور په یاد وي بل مونځ یې نه صحیح کیږي ترڅو یې چې ددې قضائي را ګرځولې نه وي .

⇦ کله چې شپږ مونځونه قضاء شي نو بیا ترتیب له مینځه ځي بیا چې قضا شوي مونځونه ور په یاد هم وي د وخت مونځ اداء کولی شي .

⇦ که په سفر کې له چا څخه مونځ قضا شو نو چې د مقیم والي په حالت کې یې قضایي راوړي نو د څلورو رکعتونو قضایي به دوه رکعتونه راوړي لکه په سفر کې یې چې څنګه مونځ کولو او که د مقیم والي په حالت کې ترې قضا شوي وو بیا یې په سفر کې قضایي راوړه نو څلور رکته به کوي .

- په چا باندې چې د کوم مانځه قضايي پاتې وي تر نفلو څخه غوره ده چې اول هغه قضايي وکوي .
- هغه کس چې مړ شي او مونځونه وربانديې قضايي پاتې شوې وي نو ورثه به يې د هر مانځه لپاره نيمه پېمانه غنم (د صدقه فطر په اندازه) ورکوي د وترو لپاره به يې بېله ورکوي ځکه هغه بېل مونځ دی .

## سجده سهوه

- د کوم واجب د پاتې کېدلو، وروسته کېدلو، د کوم رکن د وروسته کېدلو، د خپل وخت نه د کوم رکن د را وړاندې کېدلو ، هغه رکن چې يو وي د هغه د تکرار، د واجب د بدلېدلو لکه چې په خفيه مانځه کې په زوره او يا په جهري مانځه کې خفيه تلاوت وشي نو د سلام نه وروسته دوه سجدې واجبيږي دېته سجده سهوه ويل کيږي.
- ددې دوه سجدو وخت د سلام ګرځولو څخه وروسته دی لکن که د سلام څخه وړاندې يې وکولې نو هم صحيح کيږي .
- د اعوذ با لله، بسم الله د انتقال د الله اکبرونو د پاتې کېدلو سره د سهوې سجده نه واجبيږي.
- که په دوو اولو رکعتونو کې يا په يوه کې ورڅخه الحمد لله پاتې شوه سجده سهوه وربانديې واجبه ده .

⇦ که الحمد لله یې شروع کړه او څه زیاته برخه یې وویله بیا نوره ورځخه هېره شوه نو د سهوې سجده وربانديې نه ده لازمه او که لږ یې ویلې وه نوره ترېنه پاتې شوه بیا سجده سهوه وربانديې لازمه ده .

⇦ که په اولو دوو رکعتونو کې یې الحمد لله په یو رکعت کې سر په سر دوه ځله وویله نو د سهوې سجده وربانديې لازمه ده او که الحمد لله یې وویله او بیا یې سورت وویلو او بیا یې الحمد لله وویله نو بیا وربانديې سجده سهوه نشته .

⇦ که په فرضي مانځه کې په دریم یا څلورم رکعت کې الحمد لله ورځخه پاتې شوه سجده سهوه وربانديې نشته که په نفلو یا وترو کې په دریم یا څلورم رکعت کې هم پاتې شوه سجده سهوه وربانديې لازمه ده (البحر الرائق)

⇦ که په اولو دوو رکعتونو کې یې یوازې الحمد لله وویله سورت یې ورسره ونه ویلو یا یې صرف یو لنډ آیت ولوستلو نو د سهوې سجده وربانديې لازمه ده او که یو لنډ آیت یې ولوستلو او فکر یې نه وو رکوع ته شکته شو بیا ور په یاد شول چې ما خو صرف یو آیت ولوستلو بېرته را پاڅېدو بیا یې دوه آیتونه نور ولوستل بیا هم وربانديې د سهو سجده شته.

⇦ که الحمد لله ورځخه پاتې شوه او راساً یې په سورت شروع وکوله چې کله ور په یاد شوه نو د

سر نه به الحمد لله ووايي او بيا به ورپسې سورت ووايي او كه په ركوع كې هم ور په زړه شول چې الحمد لله پاتې ده نو ورپسې را پورته به شي او كه د ركوع نه را پورته شوی وو په قومه كې ور په ياد شو نو بيا به الحمد لله ووايي بيا به سورت ووايي بيا به ركوع وكوي او د مانځه په آخر كې به د سهوې سجده وكوي.

⇦ كه الحمد لله يې تر سورت وروسته كړه بيا هم وربانديې د سهوې سجده واجب ده .

⇦ كه د فرضو په وروستنيو ركعتونو كې يې سورت ولوستلو نو سجده وربانديې نه ده لازمه او كه په نورو اركانو لكه ركوع، سجده او قعده كې يې سورت ولوستلو نو سجده وربانديې لازمه ده او كه په قعده كې يې اول شروع په التحيات وكوله بيا يې وروسته سورت ولوستلو سجده وربانديې نه ده لازمه (محيط السرخسي)

⇦ كه د فرضو په وروستنيو ركعتونو كې يې الحمد لله ونه ويله سجده سهوه وربانديې نه ده لازمه .

⇦ كه په مانځه كې يې د سجدې آيت ولوست او بيا يې سجده كول هېر شول وروسته ور په زړه شول نو بيا يې سجده وكوله په آخر كې به د سهوې سجده كوي (التتارخانية / عالمگيري)

⇦ كه په يوه ركعت كې يې يوه سجده وكوله بيا وروسته ور په ياد شول نو يوه سجده يې په بل ركعت يا د مانځه په آخر كې راوگرځوله د سهوې سجده به كوي .

- که د دوهم رکعت د دوهمې سجدې نه راساً دریم رکعت ته پاڅېدو نو اوله قعده یې ونه کوله نو د سهوې سجده وربانديې واجب ده .
- که په اوله یا دوهمه قعده کې التحیات لله ویل ورڅخه پاتې شول نو د سهو سجده وربانديې لازمه ده .
- که یې فکر نه وو او په ولاړه یې تر الحمد لله ورانديې التحیات لله شروع کړه نو سجده سهوه وربانديې نه لازمیږي او که په اول او دوهم رکعت کې یې په الحمد لله پسې وروسته شروع کړه نو سجده سهوه پرې لازمه ده ځکه دا د سورت ځای وو او هغه اوس وروسته او یا پاتې شو . (الظهیریة / عالمګیري)
- او که په وروستنیو رکعتونو کې یې د الحمد لله څخه وروسته التحیات لله وویله نو سهوه وربانديې نه لازمیږي . (محیط السرخسي)
- که په قعده کې یې د التحیات په ځای الحمد لله وویله نو د سهوې سجده وربانديې لازمه ده او که د التحیات لله ویلو نه وروسته یې الحمد لله وویله نو بیا وربانديې د سهوي سجده نشته همدارنګه که اول یې الحمد لله وویله بیا یې التحیات پسې وویل بیا هم سجده سهوه وربانديې لازمیږي. (عالمګیري)
- که تشهد یې په ولاړه یا رکوع کې یا سجده کې وویل نو سجده سهوه وربانديې نه لازمیږي.

⇦ که په اوله قعده کې يې تر تشهد نه وروسته درود وويل نو د سهوې سجدې وربانديې لازميږي د حضرت امام ابي حنيفه رحمه الله په مذهب چې اللهم صل على محمد ووايي نو د سهوې سجده وربانديې لازمه ده . (المضمرات)

⇦ که يې سلام وګرځولو له خپل ځای نه ښوريدلی نه وو ور په ياد شول چې التحيات لله يې ونه ويل نو بېرته به التحيات لله شروع کړي او په آخر کې به د سهوې سجده وکوي .

⇦ که د دوهم رکعت د دوهمې سجدې نه را پاڅيږي ددې په ځای چې لمړۍ قعدې ته کيني په هېره سره پاڅيږي نيغ ودريږي او يا دريدلو ته نيږدې وي بيا ور په ياد شي چې دا ځل مې د کېناستلو نمبر وو نو بس اوس د ودريږي بېرته دې کېناستلو ته نه راګرځي همداسې به خپل مونځ ختم کړي او د اولې قعدې لپاره به د مانځه په آخر کې د سهوې سجده وکوي او که په همدې صورت کې د دريدلو نه وروسته اولې قعدې ته کيني نو مونځ يې فاسد شو له سر نه به يې کوي او که په داسې وخت کې ور په يا شو چې دی لا دريدلی نه وو او نه دريدلو ته نيږدې وو بلکه کېناستلو ته نيږدې وو نو بېرته به کيني د سهوې سجده هم وربانديې نشته. (فتاوی قاضي خان)

⇦ که د رکوع په ځای سيده سجدې ته لاړو نو اوس د سجده وکوي په آخر کې به د سهوې سجده وکوي

همدارنګه که یې رکوع دوه ځله وکوله نو د سهوې سجده ورباندې لازمه ده .

⇦ که مونځ کونکي ته په مانځه کې شک شي او د هغه په اړه دومره فکر وکوي چې دی د مانځه دکوم عمل نه مصروف کړي بیا هم سجده وربانديې لازمه ده د مثال په ډول په آخري قعده کې ناست وو شک یې شو چې ما دری او که څلور رکعته وکول او پدې اړه یې فکر اوږد کړو تردې چې سلام یې له خپل ځای نه وروسته کړو او بیا یې یقین شو چې څلور رکعته مې پوره کړل نو مونځ به ختم کړي او په آخر کې به د سهوې سجده وکوي.

⇦ او که یو طرف ته یې سلام وګرځولو بیا یې شک شو د بل سلام نه وړاندې یې فکر وکولو او دوهم طرف ته سلام یې وروسته کړو نو د سهوې سجده وربانديې نشته .

⇦ دعا قنوت چې پاتې شي نو هم د سهوې سجده واجبه کیږي .

⇦ د تلاوت نه وروسته د قنوت څخه وړاندې الله اکبر هم واجب دی که دا هم پاتې شو نو د سهوې سجده وربانديې لازمه ده .

⇦ هغه د سهوې سجده چې په امام واجبه شي په مقتدي هم واجبه ده که مقتدي د سهوې د واجب کېدلو په وخت کي وو او کنه وربانديې واجبه ده د مثال په ډول که مقتدي د امام سره په مانځه کې په دوهم رکعت کې شریک شوی وو او

په امام باندې د سهوې سجده په اول رکعت کې واجبه شوې وه بیا به هم مقتدې ورسره سجده کوي.

⇦ که چېرته امام سجده ونه کوله مقتدې به یې یوازې نه کوي .

⇦ که مقتدي په خپل مانځه کې سهوه شي نو ددېنه سجده نه واجبیږي .

⇦ د هغه کس چې څه مونځ تېر شوی وي (مسبوق) د امام سره به د سهوې سجده وکوي بیا به پاځیږي خپل مونځ به پوره کړي .

⇦ که چېرته مسبوق پاڅېدو او دهغه نه وروسته امام ته ور په یاد شوه چې په ده باندې د سهوې سجده واجبه وه او سجدې ته ښکته شو نو مسبوق به هم خپل مونځ ورته پرېږدي او د امام سره به سجدې ته لاړ شي د سهوې سجده به ورسره وکوي بیا به پاځیږي خپل مونځ به پوره کړي او که امام ته سجدې ته را ونه ګرځېدو خپل مونځ یې پوره کړو نو هم مونځ یې صحیح کیږي او د مانځه په آخر کې به دسهوې سجده کوي او که امام ډېر وروسته سجدې ته لاړو چې مسبوق په خپل پاتې مانځه کې سجده کړې وي نو بیا به د امام سره سجده نه کوي بلکه خپل مونځ به پوره کړي او په آخر کې به سجده وکوي.

⇦ د ماسپښین په مانځه کې څوک پنځم رکعت ته پاڅېدل پدې ګمان چې دا دریم رکعت دی او

پنځم رکعت ته د سجدې کولو څخه وړاندې ور په یاد شو چې دا پنځم رکعت دی نو بېرته به کیني او خپل مونځ به ختم کړي په آخر کې به د سهوې سجده وکوي او که د پنځم رکعت لپاره یې سجده کړې وه بیا ور په یاد شو چې دا پنځم رکعت دی نو اوس به پدې پسې یو بل رکعت هم وکوي دا به دوه رکعته پوره شي او دا به نفل شي او په آخر کې به د سهوې سجده وکوي لکن دا دوه رکعته یې د سنتو دوو رکعتونو په ځای نه دریږي دا صرف نفل دي.

⇦ که په پورتني صورت کې د آخري قعدې لپاره نه وو ناست او پنځم رکعت یې وکولو نو مونځ یې فاسد شو بېرته به یې له سرنه وکوي .

⇦ د مازیګر په مانځه کې که دا صورت وي نو شپږم دې ورپسې نه پوره کوي ځکه د مازیګر نه وروسته نفل نشته نو چې کله ور په یاد شو چې پنځم رکعت ته را پاڅېدلی نو بېرته د کیني خپل مونځ د پوره کړي او د سهو سجده دې وکوي. (البحرالرائق)

⇦ که د سحر په مانځه کې یې دریم رکعت وکولو نو څلورم به پسې نه یو ځای کوي بېرته به کیني او مونځ به ختم کړي په آخر کې به دسهوې سجده وکوي .

⇦ که په سجده سهوه کې بیا سهوه شو بیا د سهوې سجده وربانديې نشته ځکه که همداسې سلسله

روانه شي بيا يې به آخر چېرته ختميږي. (التهذيب)

⇦ که په يو مانځه کې بيا بيا وربانديې د سهوې سجده واجبه شي هماغه يوځل سجده کول ورته بس کيږي د سهوې د سجدې تکرار نشته.



## د تلاوت سجده

⇦ په قران کريم کې د تلاوت سجدې څوارلس دي .

١. د سورت اعراف په آخر کې آية :

إِنَّ ٱلَّذِينَ عِندَ رَبِّكَ لَا يَسۡتَكۡبِرُونَ عَنۡ عِبَادَتِهِۦ وَيُسَبِّحُونَهُۥ وَلَهُۥ يَسۡجُدُونَ ۩ ﴿٢٠٦﴾

٢. په سورة الرعد کې :

وَلِلَّهِ يَسۡجُدُ مَن فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ طَوۡعٗا وَكَرۡهٗا وَظِلَٰلُهُم بِٱلۡغُدُوِّ وَٱلۡأٓصَالِ ۩ ﴿١٥﴾

٣. په سورة النحل کې:

يَخَافُونَ رَبَّهُم مِّن فَوۡقِهِمۡ وَيَفۡعَلُونَ مَا يُؤۡمَرُونَ ۩ ﴿٥٠﴾

٤. په سورة الاسراء کې:

وَيَخِرُّونَ لِلۡأَذۡقَانِ يَبۡكُونَ وَيَزِيدُهُمۡ خُشُوعٗا ۩ ﴿١٠٩﴾

٥. په سورة مريم کې

أُوْلَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ أَنۡعَمَ ٱللَّهُ عَلَيۡهِم مِّنَ ٱلنَّبِيِّـۧنَ مِن ذُرِّيَّةِ ءَادَمَ وَمِمَّنۡ

حَمَلۡنَا مَعَ نُوحٖ وَمِن ذُرِّيَّةِ إِبۡرَٰهِيمَ وَإِسۡرَٰٓءِيلَ وَمِمَّنۡ هَدَيۡنَا وَٱجۡتَبَيۡنَآۚ

إِذَا تُتۡلَىٰ عَلَيۡهِمۡ ءَايَٰتُ ٱلرَّحۡمَٰنِ خَرُّواْۤ سُجَّدٗاۤ وَبُكِيّٗا ۩ ﴿٥٨﴾

٦. په سورة حج کې

أَلَمۡ تَرَ أَنَّ ٱللَّهَ يَسۡجُدُ لَهُۥ مَن فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَن فِي ٱلۡأَرۡضِ

وَٱلشَّمۡسُ وَٱلۡقَمَرُ وَٱلنُّجُومُ وَٱلۡجِبَالُ وَٱلشَّجَرُ وَٱلدَّوَآبُّ وَكَثِيرٞ مِّنَ

ٱلنَّاسِۖ وَكَثِيرٌ حَقَّ عَلَيۡهِ ٱلۡعَذَابُۗ وَمَن يُهِنِ ٱللَّهُ فَمَا لَهُۥ مِن مُّكۡرِمٍۚ إِنَّ

ٱللَّهَ يَفۡعَلُ مَا يَشَآءُ ۩ ﴿١٨﴾

٧. په سورة الفرقان کې:

وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ ٱسۡجُدُواْۤ لِلرَّحۡمَٰنِ قَالُواْ وَمَا ٱلرَّحۡمَٰنُ أَنَسۡجُدُ لِمَا تَأۡمُرُنَا

وَزَادَهُمۡ نُفُورٗا ۩ ﴿٦٠﴾

٨. په سورة النمل کې:

ٱللَّهُ لَآ إِلَـٰهَ إِلَّا هُوَ رَبُّ ٱلْعَرْشِ ٱلْعَظِيمِ ۩ ﴿٢٦﴾ "

٩. په سورة السجدة كې:

إِنَّمَا يُؤْمِنُ بِـَٔايَـٰتِنَا ٱلَّذِينَ إِذَا ذُكِّرُوا۟ بِهَا خَرُّوا۟ سُجَّدًا وَسَبَّحُوا۟ بِحَمْدِ

رَبِّهِمْ وَهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُونَ ۩ ﴿١٥﴾

١٠. په سورة ص كې:

قَالَ لَقَدْ ظَلَمَكَ بِسُؤَالِ نَعْجَتِكَ إِلَىٰ نِعَاجِهِۦ ۖ وَإِنَّ كَثِيرًا مِّنَ ٱلْخُلَطَآءِ

لَيَبْغِى بَعْضُهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ إِلَّا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّـٰلِحَـٰتِ وَقَلِيلٌ

مَّا هُمْ ۗ وَظَنَّ دَاوُۥدُ أَنَّمَا فَتَنَّـٰهُ فَٱسْتَغْفَرَ رَبَّهُۥ وَخَرَّ رَاكِعًا وَأَنَابَ ۩ ﴿٢٤﴾

١١. په سورة حم السجدة كې:

فَإِنِ ٱسْتَكْبَرُوا۟ فَٱلَّذِينَ عِندَ رَبِّكَ يُسَبِّحُونَ لَهُۥ بِٱلَّيْلِ وَٱلنَّهَارِ وَهُمْ لَا

يَسْـَٔمُونَ ۩ ﴿٣٨﴾

١٢. په سورة النجم كې:

فَٱسۡجُدُواْۤ لِلَّهِ وَٱعۡبُدُواْ۩ ﴿٦٢﴾

١٣. په سورة انشقت (انشقاق) کې:

وَإِذَا قُرِئَ عَلَيۡهِمُ ٱلۡقُرۡءَانُ لَا يَسۡجُدُونَ۩ ﴿٢١﴾

١٤. په سورة اقرأ (علق ) کې:

كَلَّا لَا تُطِعۡهُ وَٱسۡجُدۡ وَٱقۡتَرِب۩ ﴿١٩﴾

⇦ پدې پورتنيو آيتونو سره په آورېدونکي او ويونکي باندې سجده واجبه ده که آورېدونکي يې د تلاوت د آورېدلو نيت کړی وي او کنه سجده واجبيږي. (الهداية)

⇦ د تلاوت د سجدې د آيت په تصور اويا صرف د شونډو په ښورولو سره نه واجبيږي بلکه په هغه صورت کې واجبيږي چې تلاوت کونکی يې پداسې ډول تلاوت کوي چې که شونډو ته يې غوږ ورنيږدې کړل شي نو د آورېدلو امکان يې وي .

⇦ که چا د مختلفو خلکو نه د سجدې د آيت يو يو ټکی واورېدو نو بيا ورباندې سجده نه ده واجبه . (فتاوی قاضي خان)

⇦ که چا آيت ولوست لکن هغه لفظ يې ونه لوست په کوم چې سجده واجبيږي ( په قران کريم کې ورباندې نښه کړل شوې وي) نو بيا هم ورباندې سجده واجبه نه ده او که نور آيت يې

ونه لوست صرف هماغه یو لفظ یې ولوست بیا هم سجده وربانديږ نشته ترڅو د آیت اکثر برخه ونه لولي .

⇦ هغه کسان چې د قران کریم آیتونه لیکي او د سجدې آیت پکې ولیکي سجده وربانديږ نه لازمیږي . (فتاوی قاضي خان)

⇦ کله چې امام د سجدې آیت په مانځه کې ووایي نو چې کله آیت ختم شي نو په هماغه ځای به سجده کوي او مقتدي که آیت آورېدلی وو او کنه سجده به ورسره کوي .

⇦ او که د سجدې آیت یې ولوستلو بیا یې رکوع وکوله نو همدا د مانځه سجده ورته کفایت کوي بیا به د تلاوت سجده نه کوي.

⇦ او که د تلاوت د سجدې نه یې وروسته درې آیتونه ولوستل نو بیا د مانځه سجده ورته کفایت نه کوي بیا د تلاوت سجده ونشوه .

⇦ بیا به اوس د تلاوت سجده بېله داسې کوي چې ښکته به شي سجده به وکوي بېرته به بیا را پاڅیږي یو څو آیتونه به نور ووایي بیا به رکوع وکوي او که یې د را پاڅېدلو نه وروسته متصله رکوع وکوله نو هم صحیح ده.

⇦ په کوم ځای کې چې د تلاوت سجده د سورت په آخر کې ده نو کولی شي چې هغه سورت ختم کړي او بیا رکوع او سجده وکوي او که یې خوښه وه نو د تلاوت سجده د وکوي بیا د را پاڅیږي

پاتې سورت د ختم کړي بيا دې رکوع وکوي او خپل مونځ د مخ په وړاندې بوزي.

⇦ که د سجدې آيت يې تلاوت کړو او دېته يې بېله سجده کول نه غوښتل بلکه د همدې سجدې لپاره يې رکوع کول غوښتل نو نيت يې ضروري دی يا به يې رکوع ته له تللو نه وړاندې د انيت وي او يا به په رکوع کې دا نيت کوي چې دی پدې رکوع سره د تلاوت سجده هم کول غواړي او که نه يې په ولاړه دا نيت وکولو او نه يې په رکوع کې دا نيت شو نو بيا د تلاوت سجده صحيح نه ده.

⇦ او که دا نيت يې د رکوع نه د را پورته کېدلو نه وروسته پيدا شو بيا هم نه صحيح کيږي د تلاوت سجده نه ده شوې.

⇦ که امام په خفيه مانځه کې د سجدې آيت ولوستلو نو بيا به هم په هماغه ځای سجده کوي او مقتدي به يې هم ورسره کوي لکن مستحب داده چې امام بايد په خفيه مانځه کې د سجده تلاوت لرونکی آيت ونه لولي.

⇦ که امام په جهري مانځه کې د سجدې لرونکی آيت ولوستلو او داسې چا واورېدو چې هغه له دوی سره په مانځه کې نه وي نو په هغه باندې هم سجده واجبيږي .(الجوهر النيرة/ الهداية)

⇦ که مقتدي په مانځه کې د سجدې آيت ولوست سجده پرې نه واجبيږي.

⇦ که څوک په مانځه ولاړ وو بل چا تلاوت کولو د سجدې آیت یې ولوستلو په مونځ کونکي سجده واجبه شوه لکن په مانځه کې به یې نه کوي که یې په مانځه کې سجده وکوله نو دا سجده یې نه کیږي او مونځ یې هم نه خرابیږي نو د مانځه نه چې فارغ شي بیا به سجده وکوي.

⇦ په یو مجلس کې یې که یو آیت بیا بیا واوریدو او یا یې تلاوت کړو نو یوه سجده وربانديې واجبیږي او که په مختلفو مجلسونو کې یې یو آیت واوریدو نو متعددې سجدې به کوي چې هرڅو مجلسونه دي همدارنګه که په یو مجلس کې یې مختلف آیتونه واوریدل نو متعددې سجدې به کوي.

⇦ که تلاوت کونکی په یو ځای ناست وو او د آوریدونکي ځای بدل شو نو په تلاوت کونکي یوه سجده ده او په آوریدونکي متعددې دي او که آوریدونکی په یو ځای ناست وو او تلاوت کونکی ګرځیدو د هغه ځای بدل شو نو په تلاوت کونکي متعددې او په آوریدونکي صرف یوه سجده ده.

⇦ په یوه کوټه کې یا په یوه لوی دهلیز کې د یو ځای نه په بل ځای ته تللو باندې مجلس نه بدلیږي همدارنګه که د جومات د یو کونج نه لاړو بل کونج ته هلته یې بیا د سجدې آیت تلاوت کړو نو دا ټول یو مجلس ګڼل کیږي. (عالمګیري)

⇦ که څوک په لاره روان وو او د سجدې آیت یې بیا بیا تلاوت کولو نو هرځل وربانديې نوې سجده واجبیږي همدارنګه که چا په بحر کې لامبو وهله او د سجدې تلاوت یې تلاوت کولو نو په هر ځل وربانديې بېله سجده واجبیږي.

⇦ او که په وړوکي حوض کې یې لامبو وهله او د حوض یو کونج او بل کونج ته تللو نو سجده نه تکرار کیږي .

⇦ که چا یو ځل د سجدې آیت په مانځه کې ولوست او په مانځه کې یې سجده وکوله او د سلام نه وروسته یې فوراً بیا تلاوت کړو که په هماغه ځای کې ناست وو او یا لرې شوی وو نو بیا به سجده کوي.

⇦ که په کوم مجلس کې تلاوت کونکي د سجدې آیت تلاوت کړو او ډېرو کسانو واورېدو نو ښه خبره داده چې ټول د په یو ځای سجده وکوي او تلاوت کونکی دې ورته مخکې شي او نور دې ورپسې صف جوړ کړي .

⇦ که په هغه وخت کې چې تلاوت کولو په کوم وخت کې چې مونځ مکروه وي (د لمر راختلو په وخت، د غرمې په وخت ، د لمر لوېدلو په وخت) نو سجده کول اوس مکروه نه دي او که مخکې ددې وخت نه یې تلاوت کړی وو اوس پدې وخت کې سجده کول مکروه دي.

## د تلاوت د سجدې کولو طریقه :

- قبلې ته به مخامخ ودريږي .
- لاسونه به ځوړند ونيسي او نيت به وکوي که په خوله سره نيت ووايي نو ښه خبره ده:
- که په عربي نيت کولی شي نو داسې دې ووايي :

**نويت ان اسجد لسجدة تلاوت القرآن آمنت بالرحمن ور ضيت بالاسلام متوجهاً الى جهة الكعبة الشريفة.**

ترجمه : نيت مې کړی د تلاوت سجده کوم په الله مې ايمان راوړی په اسلام باندې راضي يم مخ مې د کعبې شريفې په لوري.

- او که دومره اوږد نشي ويلی نو لنډ دې ووايي : **اسجد لله سجدة التلاوة** (د الله لپاره د تلاوت سجده کوم) (السراج الوهاج)
- او يا دې دېته ورته الفاظ ووايي.
- الله اکبر به ووايي سجدې ته به لاړ شي .
- دری ځله به سبحان ربی الاعلی ووايي تر دريو به يې نه کموي او که يې زيات ويل نو ثواب دی او په الله اکبر سره به ترېنه را پورته شي .

⇦ د تلاوت په سجده کې غوړونو ته لاسونه پورته کول نشته نه پکې التحيات ته کېناستل او نه پکې سلام شته .

⇦ کوم شيان چې مونځ ماتوي دا سجده هم ماتوي که يې پکې خبرې وکولې ، پکې بې اودسه شو او يا هرڅه داسې څه وشول چې د مانځه په

ماتونکو شیانو کې تېر شول نو دا سجده به بیا کوي صرف که یې پدې سجده کې په زوره وخندل نو سجده یې خرابه شوه بیا به یې کوي اودس ورسره نه ماتیږي او که په مانځه کې یې په زوره وخندل نو اودس ورسره ماتیږي.

⇦ چې څوک سورت تلاوت کوي او د سجدې آیت پکې پرېږدي په هر صورت مکروه دی او که څوک د مانځه نه بهر صرف د سجدې آیت تلاوت کوي نو مکروه نه دی لکن غوره خبره دا ده (مستحب ده) چې یو یا دوه آیتونه ورسره نور هم ملګري کړي.

## د بېمار مونځ

⇦ هغه کس چې بیمار وي او په مانځه کې درېدلی نه شي هغه دې په کېناستلو مونځ وکوي رکوع او سجده دې کوي همدارنګه هغه کس چې څه تکلیف یې وو اوس هغه درېدلی شي لکن په درېدلو کې د بیماري د زیاتېدلو خطر وي او یا ددې خطر وي که بیمار مانځه ته ودریږي نو د بیماري د جوړېدلو وخت اوږدیږي (زر نه جوړیږي) همدارنګه هغه کس چې په درېدلو کې د دومره درد احساس کوي چې دده ذهن مانځه لوري ته توجه کولو ته ورڅخه نه خلاصیږي نو هغه یې هم په کېناستلو کولی شي.

⇦ همدارنګه هغه کس چې څه بیماري ونلري لکن په اوس حالت کې یې سر ګرځي درېدلی نه شي نو هغه یې هم په کېناستلو سره کولی شي.

⇦ هغه کس چې د لږ ساعت لپاره درېدلی شي نو هغه دې دومره ودرېږي څومره چې د هغه په وس پوره وي او کله چې د هغه له وس نه بهر وه نو وربانډې لازمه نه ده چې د تکلیف برداشت وکوي بیا د کیني او که صرف د یو څو لحظو لپاره درېدلی شوای نو الله اکبر د په ولاړه سره ووایي بیا د کیني .

⇦ که د مانځه لپاره درېدلی شوای لکن څه تکیې ته یې ضرورت وو نو په کوم شي دې ځان تکیه کړي او مونځ د وکوي.

⇦ که په کور کې یې په ولاړه مونځ کولی شوای لکن که بهر ته را وزي جومات ته لاړشي نو بیا په ولاړه مونځ نشي کولی نو په کور کې دې خپل مونځ په ولاړه سره وکوي . (المضمرات)

⇦ هغه کس چې بیمار وي او د بیماري له امله په کېناستلو مونځ کوي نو چې هر ډول ده ته اسانه وي هغه ډول د کیني د هغه په حق کې دا ضروري نه ده چې خامخا به د تشهد په ډول کیني . (العیني شرح الهدایة)

⇦ که بیمار د مانځه لپاره سم نشوای کېناستلی تکیې ته یې ضرورت وو نو تکیه د وکوي او خپل مونځ د وکوي . (الذخیرة)

⇦ که رکوع او سجده یې هم نشواى کولى نو بیا به مونځ په کېناستلو سره وکوي د رکوع او سجدې لپاره به اشاره کوي او د سجدې لپاره اشاره به د رکوع له اشارې څخه ښکته کړي او که رکوع او سجدې دواړو ته یې یو ډول اشاره کوله نه ده صحیح. (البحرالرائق)

⇦ که د رکوع او سجدې څخه عاجز وو لکن په درېدلو سره قادر وو دهغه په حق کې مستحب داده چې هغه د په کېناستو سره او په اشاره سره مونځ وکوي او که په ولاړه سره یې مونځ کولو او په ولاړه سره یې د رکوع او سجدې لپاره اشاره کوله نو د فتاواى قاضي خان له مخې یې بیا هم مونځ صحیح دى (عالمګیري)

⇦ که بیمار خپل مخ زمکې ته نشي ښکته کولى نو مخ ته د کوم شي ور پورته کول مکروه دي چې هغه وربانديې سجده وکوي بیا به هم کتل کیږي که سجده تر رکوع یو څه ښکته راتله نو مونځ یې د کراهیت سره صحیح دى .

⇦ که په تندي باندې یې زخم وي او دهغه د امله نشي کولى د سجدې په وخت کې تندى په زمکه ولګوي نو صرف په پوزه دې سجده وکوي که نور څه تکلیف ورته نه وي اشاره کول ورته نه دي روا او که یې وکوي مونځ یې کیږي لکن ښه کار نه دى. (المضمرات)

⇦ او که بالښت په زمکه ورته کیږدي په هغه باندې سجده ور لګوي نو بیا صحیح دی .

⇦ که په کېناستلو باندې هم قادر نه وي نو شا په تخته یې دې څملوي پښې یې دې قبلې لوري ته کړي که تر سر لاندې یې لږ لوړ بالښت ور لاندې کړي غوره دی او د رکوع او سجدې لپاره به په سر سره اشاره کوي که یې په اړخ څملوي چې مخ یې قبلې ته شي بیا هم صحیح ده لکن اول صورت یې غوره دی (الکافي)

⇦ هغه کس چې په مانځه کې په داسې حالت کې شروع وکوي چې جوړ وي بیا په مانځه کې ورته تکلیف پیدا شو چې دی یې دریدلو ته نه پرېښودو نو بیا به کیني او که د رکوع او سجدې نه یې منع کړو نو په مانځه کې دې اشاره شروع کړي او که د کېناستلو نه یې منع کړو نو د تېر صورت په شکل دې څملي.

⇦ که چا په مانځه کې پداسې حالت کې شروع وکوله چې رکوع او سجده یې کولی شول او دریدلی نشوای د مانځه په مینځ کې الله ① ورته صحت ورکړو نو اوس دی نور مونځ په ولاړه سره وکوي او که تر اوسه یې په اشاره سره مونځ کولو اوس په رکوع او سجده باندې و توانېدو نو مونځ به دسر نه شروع کړي او ټول به درکوع او سجدې سره وکوي . (الهدایة)

⇦ کله چې بیمار په سر باندې د اشارې کولو نه عاجز شي نو بیا فرض ترینه ساقط شول په

سترګو او وریځو سره اشاره کول وربانديې لازم نه دي او نه په هغه بانديې فرض پوره کیږي او که دا عجز یې تر یوې شپې او یوې ورځ څخه کم وو نو چې کله بېرته په اشاره قادر شو د تېرو شویو مونځونو قضایي به راګرځوي اوکه دا عجز یې تر یوې شپې او یوې ورځې نه زیات وو نو بیا د تېرو شویو مونځونو قضاء وربانديې نشته او که خدای مه کړه د همدې بیماري څخه مړ شو نو په ورثه وو یې هم لازم نه دي چې دده له هغو مونځونو څخه فدیه ورکړي چې په همدې حالت کې دده څخه قضاء شوي وي. (محیط)

⇦ هغه بېمار چې د درېدلو څخه معذور وي په نورو کارونو کې په نورو تسبیحاتو کې یې حکم د جوړ سړي سره یو شان دی ټول هغه تسبیحات او نور د مانځه اذکار به وایي چې کوم جوړ وایي .

⇦ که بېمار ته قبله معلومه وه لکن ځان یې نشوای ورته برابرولی او بل داسې څوک هم نه وو چې له ده سره یې مرسته کړی وای او د انتظار وخت هم نه وو ورسره نو چې کومې خوا ته یې مخ وو مونځ د وکوي .

⇦ که څوک وو ورسره له هغه څخه د وغواړي چې دی قبلې ته سم کړي او که هغه سم نه کړو نو بیا یې چې کوم لوري ته کولی شوای مونځ د وکوي او که یې د هغه څخه ونه غوښتل او بل لوري

ته يې مونځ كول شروع كړل مونځ يې نه كيږي. ( عالمګيري)

⇦ همدارنګه كه په داسې فرش باندې ناست وو چې هغه پاک نه وو په خوا كې ورسره بل پاک فرش وو لكن دى ورته نقل كېدلاى نشواى نو كه بل څوک وو ورڅخه به وغواړي چې دى هلته نقل كړي كه هغه نقل نه كړو او يا څوک نه وو چې ده ورڅخه غوښتى واى نو په همدې نجس فرش دې مونځ وكوي صحيح كيږي .

⇦ كه څوک د پنځو مونځونو په وخت كې بې هوښه شو نو چې كله را بيدار شو قضايي به يې را وګرځوي او تر پنځو به د زياتو قضايي نه راګرځوي .

⇦ او كه شراب يې وڅښل تر يوې شپې او يوې ورځې زيات نشه پاتې شو مونځونه ورڅخه نه ساقطيږي د ټولو قضايي به راګرځوي اګر كه زيات وي همدارنګه هغه كس چې تر يوې شپې او ورځې څخه زيات ويده شي قضايي وربانديې لازمه ده .

⇦ كه د كوم ركن د اداء له امله د اوداسه د ماتېدلو خطر وي نو هغه ركن دې پرېږدي دمثال په توګه څوک زخمي وي او ددې وېره وي كه سجده وكوي د زخم نه به يې وينه روانه شي او اودس به يې مات شي نو خير دى سجده دې نه كوي مونځ يې كيږي .

- همدارنګه که سلسل البول یا بله بیماري وي او په د ریدلو ورته تکلیف وي نو په کېناستو دې مونځ وکوي .
- که د بیماري په حالت کې مونځ ترې قضاء شي نو چې د جوړ والي په حالت کې یې را ګرځوي نو په ولاړه او د رکوع اوسجدې سره به یې را ګرځوي او که د جوړوالي قضایي یې د بیماري په حالت کې را ګرځوله نو د بیماري په طور به یې را ګرځوي.



# د مسافر مونځ

⇦ د حضرت امام ابي حنيفه رحمه الله په مذهب د سفر لږترلږه موده چې احکام ورسره بدليږي درې شپې او درې ورځې ده په فقهي مسائلو کې هغه احکام چې د سفر سره تغير خوري :

- د څلور رکعتي مانځه په دوو رکعتونو بدلېدل.
- د رمضان د روژې د خوراک روا والی .
- د مسح موده تر دريو شپو او دريو ورځو پورې اوږدېدل .
- د جمعې او د اخترونو د مونځونو وجوب ساقط کېدل.
- د قرباني ساقط کېدل.
- د زنانه د نا محرم سره د وتلو حرمت .

⇦ دا د سفر موده چې درې ورځې او درې شپې ده د هغه سفر موده چې په پښو سره کيږي او په درميانه رفتار سره وي او سفر هم داسې سفر وي چې د ارام او د دمې د وخت مراعات پکې وي ځکه مسافر چې سفر کوي نو درې شپې او درې ورځې خو مسلسل سفر نه کوي دمه پکې کوي خوب پکې کوي او د ژوند د ضرورياتو لپاره پکې په مختلفو ځايونو کې حصاريږي.

⇦ د سفر موده د هغې لارې مطابق معتبره ده په کومه لاره چې دی سفر کوي او که دی ځای ته بله لاره تر دې لنډه ورغلې وه چې تلونکی

ورته په يوه شپه کې رسېدو نو هغې ته اعتبار نشته .

⇦ يو ځای ته که څوک په عادي رفتار ځي نو په دريو شپو او دريو ورځو کې رسيږي لکن دی په داسې شي باندې لاړو چې ډېر تېز ورسېدو نو بيا هم پدې لاره چې سفر کوي اګر که دی په يوه ورځ کې رسيږي نو څلور رکعتي فرض به دوه رکعته کوي .

⇦ د مسافر لپاره څلور رکعته فرض اوس دوه رکعته دي او دا دوه کول يې هم واجب دي په پوره کولو کې يې ثواب نشته .

⇦ که څوک په سفر کې د دوه رکعتونو په ځای څلور رکعته کوي نو که د دوو رکعتونو څخه وروسته د التحيات لله د ويلو په اندازه کېناستلو نو مونځ يې کيږي او وروستني دوه رکعتونه دده لپاره نفل دي لکن داسې کول غوره نه دي او که دا کېناستل ورڅخه پاتې شول بيا يې مونځ نه کيږي.

⇦ هغه کس چې په سفر باندې روان وي که د خير په کار پسې روان وي او که د شر په کار پسې روان وي د امام ابي حنيفه رحمه الله په مذهب په هر صورت د څلورو رکعتونو په ځای دوه رکعته کول وربانديې لازم دي . (المحيط)

⇦ د سفر تاثير صرف په فرضو رکعتونو کې وي صرف فرض به د څلورو رکعتونو په ځای دوه رکعته کوي او سنت به هر وخت پوره کوي او که چېرته

د وېرې ځای وو حالت عادي نه وو نو بیا سنت پرېښودلی شي د امن او قراري په حالت کې یې نشي پرېښودلی .

⇦ چې کله په سفر باندې روان شي نو چې د خپل ښار د کورونو څخه ووتلو چې بیا د مانځه وخت ورباندې راغلو د هغه وخت نه به د سفر مونځ شروع کوي. (المحیط)

⇦ترڅو چې له کوم ځای نه په سفر وتلی نه وي نو د سفر مونځ به نه کوي که صرف د وتلو اراده یې کړې وه نو په یوازې اراده باندې نه مسافر کیږي او کله چې یو ځای ته ورسیږي هلته یې که د پنځلسو ورځو نه لږ وخت تېرولو نو د سفر مونځ به کوي او که تر پنځلسو ورځو یې زیات وخت تېرولو بیا به د اقامت مونځ کوي او اقامت یې صرف په نیت سره کیږي چې څنګه یې د پنځلسو ورځو لپاره د پاتې کېدلو نیت وکولو نور مقیم شو.

⇦ هغه کس چې په سفر روان شي دی د سفر له سهولتونو څخه هغه وخت برخه من کېدلی شي چې دده د سفر د مسافې د تللو اراده وي او که د یوه کلي نه بل کلي ته یې د تلو اراده وه نو که پدې ډول په ټوله دنیا هم را وګرځي چې اراده یې د دومره سفر نه وي چې په دریو شپو او دریو ورځو کې کیږي نو د سفر له سهولتونو څخه نشي برخه من کېدلی .

⇦ مسافر به تر هغه وخته پورې د سفر مونځ کوي ترڅو يې چې په کوم ځای کې د پنځلسو او يا تر پنځلسو د زياتو شپو د هستوګنې اراده نه وي کړې او کله يې چې وکوله نو بيا به خپل مونځ پوره کوي او که رمضان وو نو روژه نيول هم وربانديې فرض دي.

⇦ هغه کس چې په سفر کې د بل کس تابع وي لکه عادي غړی چې د لښکر د امير تابع وي غلام چې د مالک او يا ښځه د خاوند نو په نيت کې هم د هغه تابع دی که هغه متبوع د اقامت نيت وکولو دی هم ورسره مقيم کيږي او که هغه مسافر وو نو دی هم ورسره مسافر دی .

⇦ که په سفر کې په مانځه کې ولاړ وو پدې وخت کې يې په مانځه کې اراده وکوله چې دلته به پنځلس ورځې تېروي نو همدا مونځ به اوس څلور رکعته پوره کړي .

⇦ مسافر چې په هغه مونځ کې امامت کوي چې هغه څلور رکعته وي نو خپله به دوه رکعته پوره کړي سلام به وګرځوي او خلک به دده له سلام څخه وروسته خپل مونځ پوره کړي او که مسافر په بل امام پسې مونځ کولو چې هغه مقيم وو نو د هغه د متابعت لپاره به څلور رکعته پوره کړي .

وطنونه په درى ډوله دي .

⇦ اصلي وطن : دا هغه وطن وي چې چېرته انسان پيدا شوى وي او په هغه کې يې اهل اوسيږي .
⇦ د اقامت وطن: دا هغه وطن وي چې مسافر پکې د پنځلسو ورځو لپاره يا د پنځلسو ورځو نه د زيات وخت لپاره د پاتې کېدلو اراده وکوي.
⇦ د سکونت وطن: دا هغه ځاى وي چې مسافر هلته د پنځلسو ورځو نه د کم وخت لپاره د پاتې کېدلو اراده وکوي .
⇦ وطن اصلي (چېرته چې دده تولد شوى وي او اوس يې هم اهل او د کور خلک هلته اوسيږي) هغه وخت بدلېدلى شي چې کور له دى ځاى نه بل ځاى ته يوسي او دلته يې هېڅوک پاتې نشي.
⇦ ترڅو پورې يې چې اهل په وطن اصلي کې وي نو چې کله وطن اصلي ته را ننوزي که د يوې شپې د پاتې کېدلو اراده يې وه او که د زيات وخت مونځ به پوره کوي پدې وطن کې دى مسافر نه دى .
⇦ که يې نيم اهل له دې وطن څخه نقل کړل په بل وطن کې يې ميشت کړل نو اوس يې هغه بل وطن هم وطن اصلي کېدلى شي چېرته چې دده اهل اوسيږي نو چې کله هغه ښار ته ور ننوزي نو بيا به هم هلته د سفر مونځ نه کوي هلته هم دى مقيم دى او که د اول نه يې ټول اهل دوهم

ته را نقل کړو نو اوس يې صرف دوهم هستوګنځی اصلي وطن دی دلته به مقيم وي او اول وطن اصلي ته چې ورشي هلته به د سفر مونځ کوي.

⇦ او په کوم وطن کې چې ده د اقامت نيت کړی وو د هغې ځای نه بل ځای ته نقل شو نو اول ځای ته چې اوس ځي هلته به دی مسافر وي همدارنګه چې لدې ځای نه په سفر لاړو چې بېرته دی ځای ته را وګرځي نو که د ۱۵ ورځو نه يې د کم وخت تېرولو اراده وه نو دی دلته مسافر دی .

⇦ هغه کس چې په کومه سپرلۍ باندې د سپرېدلو په حالت کې مونځ کوي نو چې کومې خواته ئې د سپرلۍ مخه وه هماغه لوري ته به په اشاره سره مونځ کوي او که يې بلې خوا ته مخ واړولو نو مونځ يې نه کيږي.

⇦ په سپرلۍ چې مونځ کوي خامخا به اشاره کوي او که په هغه څه باندې يې سجده کېښوده چې دده په سپرلۍ باندې اچول شوي وو نو مونځ يې نه کيږي .

⇦ په سپرلۍ باندې د مانځه کولو لپاره د سفر د مودې شرط نشته که څوک د يوې شپې په سفر هم روان وي نو د ضرورت په وخت کې په سپرلۍ مونځ کولی شي .

⇦ که په يوه سپرلۍ څو کسان ناست وي نو دوی جمع هم کولی شي يو به يې امام وي او ټول به اشاره کوي او که په مختلفو سپرليو ناست وو

نو اقتداء يې نه ده صيحيح که يې پدې حالت کې په جمع مونځ وکولو نو صرف د امام مونځ صحيح دی د نورو نه دی صحيح .

- په کښتۍ يا بل داسې لويه نقلي وسيله کې چې مونځ کوي نو که يې په قيام رکوع او سجدې سره کولی شول نو بيا به يې په اشاره سره نه کوي .
- په داسې لويه وسيله کې که څومره لرې هم ځي د اقامت نيت پکې نشي کولی همدارنګه ددې وسيلې چلونکي او په هغه کې کار کونکي خلک هم مسافر دي دوی به هم د سفر مونځ کوي .



# د جُمعې مونځ

⇦ دا مونځ فرض عين دی په چا باندې چې د جُمعې مونځ فرض کيږي ددې لپاره څه شرطونه دي .

الف : هغه کس به اصيل وي په غلام باندې نشته .

ب : نارينه توب شرط دی په زنانه وو فرض نه دی (عالمګيري)

ج : اقامت شرط دی په مسافر باندې فرض نه دی .

د : جوړ والی شرط دی په ډېر بېمار باندې نه دی فرض .

ه : جومات ته په تللو باندې قدرت درلودل شرط دي هغه کس چې جومات ته په تللو قادر نه وي په هغه باندې نه دی فرض .

و : د سترګو جوړ والی هم شرط دی پهړانده باندې نه دی فرض اګر که لارښود (داسې څوک چې دی هر ځای ته بيايي) ولري .

⇦ هغه کس چې ډېر سپين ږيری وي حکم يې د بيمار دی د جُمعې مانځه ته تلل ورباندې فرض نه دي .

⇦ په سخت باران سره او د ظالم بادشاه نه په وېرې سره هم جُمعه ساقطيږي .

⇦ هغه کس چې د جُمعې مونځ ورباندې فرض نه وي که د جُمعې په مانځه کې يې شرکت وکولو نو د ماسپښين د مانځه په ځای يې درږيږي .

## د جُمعې مونځ چې په کوم ځای کې فرض کیږي ددې لپاره څه شرطونه دي:

### الف : ښار :

- ⇦ ښار هغه ځای وي چېرته چې مفتي او قاضي ناست وي اسلامي احکام نافذ کوي په مجرمانو باندې حدونه قائم کوي او مجرمانو ته سزا ورکوي او ابادي ولري . (فتاوی قاضي خان)
- ⇦ د حدونو د قایم کولو مطلب دادی چې که قایمول وغواړي په وس کې يې وي قدرت وربانديې لري. (فتاوی الغياثية / عالمگيري)
- ⇦ په کوم ښار کې چې د جُمعې د مانځه د اداء لپاره شرطونه برابر شي دهغه ښار په چاپېريال کې چې نور جوماتونه وي چې کورنه يې د ښار د کورونو سره لګېدلې وي په هغې کې هم د جُمعې مونځونه کېدلی شي .
- ⇦ په کليو کې هغه چې د ښار نه لرې وي د هغو په جوماتونو کې د جُمعې مونځ نه کيږي لکن که يو کليوان د جُمعې په ورځ ښار ته راشي او د جُمعې ورځ دلته په ښار کې تېرول غواړي نو بيا په هغه باندې هم د جُمعې مونځ فرض دی او که د مانځه څخه وړاندې له ښار نه وتل غواړي او يا له مانځه څخه وروسته وتل غواړي ټوله ورځ دلته تېرول نه غواړي بيا وربانديې نه

دی فرض لکن که بیا یې هم وکوي د زیات ثواب مستحق ګرځي. (فتاوی قاضي خان)

⇦ کوم کسان چې په کليو کې اوسيږي او هلته د جُمعې مونځ نه وي فرض نو هغوی دې په خپلو جوماتونو کې د ماسپښين مونځ په اذان او جمع سره وکوي او هغه کسان چې په ښار کې وي او د جُمعې مونځ وربانديې نه وي فرض لکه مسافرين نو هغوی به په ښار کې جمع نه کوي يوازې به مونځ کوي همدارنګه هغه کسان چې په ښار کې وي او د جُمعې مونځ ورڅخه تېر شي نو هغه به د ماسپښين مونځ په جمع سره نه کوي همدارنګه بېماران او بنديان او نور هغه کسان چې د جُمعې مانځه ته نشي تلی دوی ته جمع کول مکروه دي. (فتاوی قاضي خان)

## ب : د بادشاه يا د هغه د مقرر شوي نائب وجود او يا اجازه

⇦ د بادشاه يا د هغه د مقرر شوي نائب وجود او يا اجازه هم پکې ضروري ده که په کوم ځای کې بادشاه او يا د هغه نائب د مانځه د کولو اجازه ورنکړي نو هلته به نه کيږي .

## ج : د ماسپښین وخت :

⇦ د ماسپښن وخت د جُمعې د مانځه وخت دی نو که د ماسپښین وخت تېر شي بیا د جُمعې مونځ قضاء شو . (فتاوی قاضي خان)

## د : خطبه

⇦ د مانځه نه وړاندې خطبه ویل هم شرط دي که بغیر د خطبې نه یې مونځ وکولو او یا یې خطبه د ماسپښین تر وخت وړاندې وویله نو بیا هم مونځ نه کیږي .

⇦ په خطبه کې دوه شیان فرض دي اول دا چې د ماسپښین په وخت کې به وي تر مانځه وړاندې که د زوال نه وړاندې (د ماسپښین د وخت د داخلېدلو څخه وړاندې) وویل شوه او یا تر مانځه وروسته وویل شوه نو نه ده صحیح دوهم : باید د الله ① په ذکر باندې مشتمله وي (البحر الرائق) چې صرف په الحمد لله او د الله ① په ثناء باندې مشتمله وي صحیح ده .

⇦ که د خطبې په وخت کې ورته دری نارینه کسان نه وو ناست یعني یا خو یې خطبه یوازې ویله او یا ورته زنانه ناستې وې نو بیا هم خطبه نه ده صحیح .

# د خطبې سنتونه

د خطبې سنتونه
په خطبه کې لاندې کارونه سنت دي :
پاکوالی : د بې اودسه لپاره خطبه ویل مکروه دي .
درېدل : په کېناستو سره خطبه ویل مکروه دي .
د خلکو لوري ته مخ اړول .
اعوذبالله ویل تر خطبه وړاندې که له ځان سره یې ووایي هم صحیح ده .
پداسې توګه خطبه ویل چې خلک یې واوري .
په الحمد لله سره شروع کول .
د الله ① حمد پکې ویل
د شهادت کلمه پکې ویل
په رسول الله ﷺ باندې درود پکې ویل
د پند او نصحیت خبرې پکې کول
د قران کریم آیتونه پکې شامل کول چې درې وړوکي آیتونه پکې ووایي او یا یو اوږد آیت.
خطبه په دوه برخو ویشل او د یوې برخې نه وروسته یوه لحظه کېناستل .
دوهمه برخه بېرته په حمد سره شروع کول .
په دعا کې مسلمانانو نارینه او ښځینه وو ته دعا کول .
خطبې ډېرې نه اوږدول .
د دوو خطبو په مینځ کې د دریو وړو آیتونو د لوستلو د وخت په اندازه کېناستل .

خطبه په منبر باندې ویل .

⇦ خطبه به هغه کس وایې چې کوم مونځ هم ورکوي او که د ضرورت نه بغیر مونځ هغه چا ورنه کړو چا چې خطبه ویلې وه نو دا مکروه ده

⇦ په خطبه کې به خطیب خبرې نه کوي لکن که هغه خبرې امر بالمعروف او یا نهی عن المنکر وه نو بیا خیر دی خطیب به په خطبه کې خوراک او څښاک نه کوي. (عالمګیري)

⇦ په ټولو خلکو لازمه ده چې خطبه په غور سره له اول نه تر آخر پورې واوري د خطبې په دوران کې به خبرې نه کوي . (عالمګیري)

⇦ خطیب ته نیږدې کېناستل تر لرې کېناستلو نه غوره دي. (عالمګیري)

⇦ کله چې خطیب خطبه وایې نو چې څوک څنګه جومات ته را ننوزي نو زر د کیني او خطبه آوریدل د شروع کړي بې ضرورته دې په جومات کې یوې خوا او بلې خوا ته نه ځي ځکه دا ګرځېدل هم یو کار دی چې د خطبې په دوران کې نه دی روا. (فتاوی قاضي خان)

## ٥ : جمع

⇦ د جُمعې په مانځه کې د جمع شرط هم شته چېرته چې د جُمعې مونځ کیږي لږ تر لږه دری کسان به د امام نه بغیر موجود وي . (التبیین)

⇦ دا دری کسان به هغه کسان وي چې د دوی امامت صحیح کیږي او که دا دری کسان ماشومان او یا ښځې وې نو بیا هم د جُمعې مونځ دلته نه صحیح کیږي .

## و: عامه اجازه

⇦ د جُمعې مونځ به په داسې جومات کې کیږي چې هلته د هر چا د ورتلو اجازه وي که چا جومات جوړ کړی وي او عامو خلکو ته د ننوتلو اجازه نه ورکوي نو هلته د جُمعې مونځ نه کیږي .

⇦ عامه اجازه داده چې د جومات دروازې خلاصې کړي او په زوره اذان وکوي او چې هرڅوک جومات ته ننوزي څوک ورته د منع کولو په موخه په مخه کې نه دریږي.

⇦ د مثال په توګه چې کوم مشر سړی وي د خپل لښکر سره جومات ته ننوزي او نورو خلکو ته د ور ننوتلو اجازه ورنه کړي نو د جُمعې مونځ یې نه کیږي ا و که عوامو خلکو ته یې د ورتلو اجازه ورکړه لکن څوک ورنغلل نو بیا هم مونځ صحیح دی. (المحیط)

⇦ هغه څوک چې د څه عذر له امله د ماسپښین مونځ په کور کې وکوي بیا جومات ته د جُمعې د مانځه لپاره روان شي نو کله چې دی را ووتلو امام د جُمعې د مانځه نه فارغ شوی وو نو د ماسپښین مونځ یې شوی دی او که امام لا فارغ

شوی نه وو دی ور ورسېدو نو اوس یې د ماسپښین مونځ فاسد شو که اوس یې د جُمعې مونځ ونه کولو نو د ماسپښین مونځ به له سر نه کوي .

⇦ په کوم جومات کې چې د جُمعې مونځ کیږي که چا په همدې جومات کې د ماسپښین مونځ وکولو او بیا په همدې جومات کې ناست وو چې امام د جُمعې مونځ شروع کړو که ده ورسره شروع کړو نو اوس یې د ماسپښین مونځ فاسد شو تراوسه پورې نه وو فاسد شوی. (البحر الرائق)

⇦ که د جُمعې په مانځه کې څه برخه له چا نه تېره شي نو چې د امام د فارغ کېدلو نه وروسته یې دی را ګرځوي نو خوښه یې ده که تلاوت په زوره کوي او که پټ یې کوي. (عالمګیري)

⇦ د جُمعې مانځه ته په پاکو جامو کې په داسې حالت کې چې عطر یې لګولي وي مستحب دي .

## د اخترونو مونځونه

### د اخترونو مونځونه واجب دي .

⇦ ټول شرطونه یې د جُمعې په ډول دي صرف که د اختر په مانځه کې خطبه پاتې هم شي مونځ

صحيح کيږي لکن سره د کراهيت نه . (نور الايضاح)

⇦ د اخترونو مونځونه په هغه کسانو باندې واجب دي په چا باندې چې د جُمعې مونځ لا زم وي .

## په اخترونو کې لاندې شيان مستحب دي.

- په وړوکي اختر کې خوراک تر مانځه وړاندې مستحب دی او په لوی اختر کې تر مانځه وروسته خوراک مستحب دی لکن که تر مانځه يې څوک وړاندې وکوي هم ګناه پکې نشته که کېدای شي په لوی اختر کې مستحب ده چې اول خوراک يې د قربانۍ غوښه وي.
- د خورما خوراک مستحب دی که خورما نه وي نو بيا دې بل خوږ شی وخوري.
- دا خورما چې په طاق شمار سره وي دا هم مستحب ده .
- غسل کول
- مسواک وهل
- عطر لګول
- غوره جامې آغوستل.
- صدقه فطر تر مانځه وړاندې ورکول
- د خپل وس مطابق زيات خيرات کول .
- په سحر وختي کې را پاڅېدل .
- د مانځه ځای ته وختي ور وتل .

- په وړوکي اختر کې د مانځه ځای ته په لاره باندې تکبیرونه په پټه سره ویل او په لوی اختر کې الله اکبر په زوره ویل مستحب دي کله چې د مانځه ځای ته ورسیږي نو تکبیر به بس کړي..
- د مانځه نه بېرته په بله لاره کور ته ستنېدل.
- که په وس کې یې وي تر سپرلۍ نه په پښو باندې تلل غوره دي .
- د اختر له مانځه نه چې بېرته خپل هستوګنځي ته را ستون شي نو څلور رکعته نفل کول مستحب دي .
- د اختر د مانځ نه وړاندې نفل کول مکروه دي لکن که له چا څخه د سحر مونځ قضاء شوی وي نو هغه را ګرځولی شي لکن بیا هم غوره داده چې د اختر د مانځه څخه یې وروسته را وګرځوي.
- د لوی اختر په مانځه باندې بیړه کول او د وړوکي اختر مونځ یو څه وروسته کول مستحب دي .
- د اخترونو د مانځه وخت د لمر د پوره راختلو او سپین کېدلو نه شروع کیږي د لمر تر زوال (د ماسپښین د وخت تر داخلېدلو) پورې دی.

# د اختر د مانځه طريقه

د دوه ركعتونو او په هغې كې د تولو واجبو تكبيراتو لپاره به نيت وكوي.

غوږونو ته به لاس كړي تكبير تحريمه به ووايي لاسونه به تر نو (نوم) لاندې لكه په عادي مانځه كې كيږدي .

- سبحانک اللهم به ووايي.
- لاسونه به غوږونو ته يوسي الله اكبر به ووايي دا لمړی تكبير دی.
- د تكبير نه وروسته به لاسونه ځوړند نيسي .
- بيا به لاسونه غوږونو ته يوسي اودوهم تكبير به ووايي .
- بيا به لاسونه غوږونو ته يوسي او دريم تكبير به ووايي.
- بيا به لاسونه تر نو (نوم) لاندې كيږدي .
- امام به اعوذ با لله او بسم الله ووايي تلاوت به شروع كړي الحمد لله به ووايي او سورت به ورپسې كړي او مستحبه ده چې سورت سبح اسم ربک الاعلی ووايي او دا ركعت به ختم كړي .
- په دوهم ركعت كې به د بسم الله نه شروع وكوي الحمد لله به ووايي او سورت به ورپسې كړي سورت الغاشية ويل مستحب دي .
- د تلاوت نه وروسته به امام او مقتديان لاسونه غوږونو ته پورته كړي الله اكبر به ووايي .
- د تكبير نه وروسته به لاسونه ځوړند نيسي .

- بیا به لاسونه غوړونو ته یوسي اودوهم تکبیر به ووایي .
- بیا به لاسونه غوړونو ته یوسي او دریم تکبیر به ووایي.
- په څلورم تکبیر به رکوع ته لاړ شي او نور به د عامو مونځونو په ډول مونځ پای ته ورسوي .
- نکته : امام به د دوو تکبیرونو په مینځ کې دومره دمه کوي لکه چې دری ځله سبحان الله پکې ویل کیږي .
- بیا به ددېنه وروسته امام دوه خطبې وایي او د دواړو په مینځ کې به وړوکې وقفه کوي او کیني به .

⇦ اوله خطبه په نهو تکبیرونو او دوهمه په اوو تکبیرونو شروع کول مستحب دي .

⇦ د وړوکي اختر په خطبه کې به خلکو ته د صدقه فطر مسئلې ور ښیي او ورته ښکاره کوي به چې صدقه فطر په چا واجبه ده ، چاته ورکول واجب دي، کله واجبیږي، څومره واجب ده ، او څه شی ورکول واجب دي او داسې نور.

⇦ په لوی اختر کې به په خطبه کې تکبیرونه وایي او خلکو ته به د قربانۍ په اړه نصیحت وکوي او د قربانۍ مسئلې به ورته بیان کړي.

⇦ که څوک د اختر مانځه ته پداسې حالت کې ور ورسېدل چې هغه تکبیرات ویلي وو نو کله چې امام تلاوت کوي دی دې خپل تکبیرات په پټه سره ووایي او که امام یې په رکوع کې را ګیر

کړو نو که دده په ګمان که دی تکبیرات وایي بیا هم امام په رکوع کې را ګیر کولی شي نو ودې وایي او کنه نو بیا دې له امام سره رکوع وکوي او په رکوع کې دې تکبیرونه ووایي .

- او که امام یې د رکوع نه وروسته را ګیر کړو نو په قومه کې او یا سجده کې یا له هغه وروسته به تکبیرات نه وایي ځکه دی خو به د امام د فراغت نه وروسته دا مکمل رکعت بیا راګرځوي هلته به تکبیرات پکې ووایي.
- که د امام نه تکبیرونه هېر شول نو د تلاوت نه وروسته دې ووایي او که یې رکوع وکوله نو په رکوع کې دې ووایي .
- که د کوم عذر له امله د اختر مونځ پاتې شو نو په وړوکي اختر کې یې دې په سبا وکوي بل سبا ته یې دې نه پریږدي او که په لوی اختر کې پاتې شو نو سبا ته یې دې پریږدي او که یې سبا هم ونشوای کولی نو بله ورځ یې دې وکوي او دډېنه وروسته یې دې بیا نه کوي.

## تکبیرات التشریق

**الله اکبر الله اکبر لا اله الا الله و الله اکبر الله اکبر و لله الحمد**

- د عرفات د ورځې د سحر د مانځه نه شروع کیږي د لوی اختر د دریمې ورځې د مازیګر د مانځه نه وروسته ختمیږي د هرې جَمع نه وروسته یو

ځل ویل کیږي د وترو څخه وروسته نشته او د اختر د مانځه نه وروسته هم نه ویل کیږي.

- دا تکبیرونه به په مانځه پسې متصل ویل کیږي او که د سلام نه وروسته یې خبرې وکولې نو بیا به تکبیرونه پسې نه وایي .
- که ښځې په امام پسې اقتداء کړې وه دا به تکبیرونه په پټه سره وایي .
- مسبوق (هغه چې د مانځه څه برخه ترېنه تېره شوې وه) چې کله خپل مونځ ختم کړي نو بیا به یې ووایي .

## د کسوف (د لمر د تیاره کېدو حالت) مونځ

- دا سنت دی دوه رکعته مونځ دی لکه د عامو مونځونو په څېر په جمع سره اداء کیږي د امام خوښه ده چې هرسورت پکې وایي په پټه سره تلاوت پکې کیږي او اوږدوالی یې مستحب دی. (عالمګیري)
- ددې مانځه نه وروسته تر هغه وخته پورې دعا کول مستحب دي ترڅو لمر په پوره توګه رڼا شوی نه وي. (السراج الوهاج)
- امام کولی شي پدې مونځ کې تلاوت اوږد کړي او دعا لنډه کړي او یا دعا اوږده کړي او تلاوت لنډ کړي لکن په دواړو بانديې دومره وخت تېر شي چې لمر رڼا شي.

- دا مونځ به په جامع جومات کې او يا په دښته کې کيږي دا غوره دی او که په بل ځای کې وشي هم مونځ صحيح کيږي .
- که خلک په کورونو کې ځان ته مونځ وکوي نو بيا هم صحيح دی.
- پدې مانځه کې خطبه نشته لکن د مانځه نه وروسته به امام په زوره دعا کوي د امام خوښه ده که پدې دعا کې کيني مخ قبلې ته اړوي يا په ولاړه دعا کوي مخ قبلې ته کوي او يا مخ خلکو ته کوي چې دی کله دعا کوي خلک به ورپسې آمين وايي .
- که لمر تياره شو او دوی مانځه ته تيار نه شول تردې چې لمر بېرته رڼا شو نو اوس دې مونځ نه کوي.
- که لمر نيم روښانه شوی وو نو اوس هم چې را ټول شول مونځ د شروع کړي.
- که پداسې وخت کې تياره شو چې په هغه وخت کې مونځ کول مکروه وي (د لمر ختلو، د غرمې، د لمر لوېدلو په وخت) نو بيا دې مونځ نه کوي .
- که لمر تياره وو دوی د مازيګر د کراهيت له وخت نه وړاندې په مانځه شروع کړې وه تردې چې لمر په همداسې تياره حالت کې غيب شو نو بيا د مونځ بس کړي او د ماښام په مانځه د شروع وکوي.

## د خسوف (دسپوږمۍ د تیاره کېدلو وخت) مونځ

⇦ دا هم دوه رکعته مونځ دی هرڅوک به یې یوازې کوي. (محیط السرخسي)

⇦ همدارنګه که بل څه مصیبت راغلو لکه تېز طوفان، باران زیاتېدل، سخته واوره، په ورځ کې تیاره خپرېدل او داسې نور اسماني آفتونه چې راشي نو دوه رکعته مونځ کول سنت دي هرڅوک به یې یوازې کوي او دهغه نه وروسته به د الله ﷻ د رحمت او د خپلو ګناهونو د بښنې لپاره دعا ګانې غواړي ترڅو چې هغه آفت پورته شوی نه وي .

## د استسقاء (اوبو غوښتنې) مونځ

⇦ د امام ابي یوسف او امام محمد رحمهما الله په مذهب به پدې کې امام د ټولو خلکو سره دښتې ته وزي دوه رکعته مونځ به کوي تلاوت به پکې په جهر سره وایي (المضمرات)

⇦ مستحب ده چې سبح اسم ربک الاعلی په یو رکعت او سورت غاشیة په بل کې ووایي. (العیني شرح الهدایة)

⇦ د مانځه نه وروسته به امام خطبه ووایي پدې خطبه کې به په زمکه درېږي په منبر به نه درېږي غوره خبره ده چې دوه خطبې ووایي د

دواړو په مینځ کې د لږ ساعت لپاره کیني لکه د جُمعې په خطبه کې او که یوه ووایي نو هم صحیح ده ددېنه وروسته به دعا کوي د الله ① نه به د خپلو ګناهونو بښنه غواړي د حضرت امام محمد رحمه الله په مذهب به څادر هم واړوي.

⇦ څادر اړول دادي چې کله امام د خطبې نه فارغ شي مخ به قبلې ته کړي او شا به خلکو ته کړي څادر به په اوږو باندې واچوې بیا به ښکته ځړېدلې کونجونه ښی طرف په چپ لاس کې او چپ طرف په ښي لاس کې ونیسي او د اوږو نه به څادر و څنډي چې وغورځیږي او هغه دواړه طرفونه به را پورته کړي په اوږو به یې را واچوي نو د څادر ښکتنی برخه به پورته خواته شي او پورتنی ښکته خوا ته همدارنګه ښی طرف به یې چپ او چپ طرف به یې ښي طرف ته شي ددېنه وروسته به خلکو ته مخ را واړوي دعا به شروع کړي او خلک به پسې آمین وایي .

⇦ په دعا کې به خلک ناست وي لاسونه به یې پورته کړي وي مخونه به یې قبلې ته وي د خپلو ګناهونو معافي او د الله د رحمت سوالونه به کوي.

⇦ که چېرته د اولې ورځې استسقاء نه وروسته باران ونشو نو په دوهمه ورځ به بیا وزي او که ونشو نو په دریمه ورځ به بیا وزي او که

بیا باران ونشو هم نو په ځلرمه ورځ بیا وتل نشته .

⇦ دښتې ته به منبر ورسره نه وړي .

⇦ مستحب ده چې خلک به دښتې ته په زړو جامو کې او په پښو باندې لاړ شي په لاره به په عاجزي کې ځي او که سرونه لوڅ کړي غوره ده .

⇦ د استسقاء مانځه ته تر وتلو وړاندې صدقه کول مستحب دي.

⇦ ددې دعا لپاره به غیر مسلم له ځان سره نه پرېږدي او که هغوی هسې له دوی سره د دښتې د کتلو او یا هلته په خلکو باندې د کوم شي د خرڅولو په نیت وتل نو څه پروا نلري.

# جنازه

پدې کې څو بحثونه دي .

## لمړی بحث ځانکدن

⇦ کله چې د چا ځانکدن شروع شي که اسانه وه نو مخ يې دې قبلې ته واړوي او که ده ته پکې تکليف وو نو بيا خير دی .

⇦ په خوا کې به په لوړ اواز سره وايي اشهد ان لا اله الا الله و اشهد ان محمد رسول الله پداسې توګه به يې ورته وايي چې دی يې هم ورسره ووايي او ده ته به وربانديې امر نه کوي چې ته يې هم ووايه او کله يې چې يو ځل وويله نو بيا بيا يې دې وربانديې نه تکرار کوي او که يې نورې خبرې وکولې نو بيا يې دې وربانديې تکرار کړي يعني کوښښ به کيږي چې دهغه په ژبه آخري ځل همدا مبارکه کلمه راولي.

⇦ او په دې وخت کې به داسې څوک ورسره په خوا کې کينوي چې هغه دده په مرګ نه خوشحال کيږي او داسې کس وي چې دده خوا خوږی وي او له ده سره همدردي لري (السراج الوهاج)

⇦ که د هغه کس سره چې ځانکدن يې وي جنب او حائضه ښځه کيني نو هيڅ ګناه پکې نشته .

⇦ کوښښ به کیږي چې د ځانکدن په وخت کې ورته نېکان خلک را ټول کړي او په خوا کې یې ورسره کینوي.

⇦ که د ځانکدن په وخت کې د بیمار نه څه د کفر کلمې د خولې نه وزي نو په ده باندې به د کفر حکم نه کیږي او له ده سره به د مسلمانانو د مړیو په څېر رویه کیږي په هماغه ډول به یې جنازه تکفین او تجهیز کیږي .

⇦ په خوا کې ورته سورت یاسین ویل مستحب دي .

⇦ کله یې چې د نفس د وتلو وخت شي نو دده چې کوم مهربان خپل وي هغه به یې سترګې په نرمۍ ور باندې پټې کړي یوه سپینه ټوټه به را واخلي تر زنه به یې لاندې ورته تېره کړي او پاس په سر به یې ور غوټه کړي چې خوله یې خلاصه پاتې نشي.

⇦ هغه څوک چې دده سترګې ور پټوي د هغه لپاره مستحب دي چې ووایي :

**بسم الله و على ملة رسول الله اللهم يسر عليه امره و سهل عليه ما بعده و اسعده بلقائک و اجعل ما خرج اليه خيرا مما خرج عنه . (التبيين)**

⇦ لاس او پښې به یې هموار کړي که تر جنازې پورې یې وخت ډېر وي په ګېډه یې دې څه وسپنه یا لنده خټه په کوم لوښي کې یا بل شی کیږدي چې ونه پړسیږي .

⇦ له زمکې نه به يې په لږ لوړ کوم شي کې کېږدي چې د زمکې لوندوالی ورته ونه رسيږي .

⇦ تر څومره حده پورې چې کېدلی شي د دوستانو په را خبرولو کې به يې کوښښ وشي ترڅو چې غسل نه وي ورکړل شوی دده په خوا کې به تلاوت نه کيږي مکروه دی .

⇦ که ښځه وفات شوه او په ګېډه کې يې ماشوم ښوريدو نو امام محمد رحمه الله فرمايي چې ګېډه به يې څيرې کړل شي او ماشوم به ترېنه را وويستل شي بله لاره يې نشته . (فتاوی قاضي خان)

## مړي ته غسل ورکول

⇦ مړي ته غسل ورکول په اجماع او سنت سره واجب کفايي دی چې يو څه کسان پکې شرکت وکوي نو د نورو غاړه وربانديې خلاصه ده او که بالکل ورنه کړل شو د ټولو خلکو غاړه ورسره بنده ده .

⇦ واجب يو ځل غسل ورکول دي که يو ځل غسل ورکړل شو او يا يو ځل په روانو اوبو کې تخته کړل شو بېرته را وويستل شو هم غسل يې شوی دی لکن تر دريو ځلو پورې تکرار يې سنت دی.

- د غسل لپاره به یې داسې کیږدي چې څنګه یې په قبر کې ایږدي او یا چې څنګه ورته اسانه وه هغه شان یې دې کیږدي چې د غسل ورکولو وخت یې شو نو جامې به تربنه وباسي .
- د غسل ځای ته به پرده ووهي چې صرف هغه کس چې غسل ورکوي او هغه چې ورسره مرسته کوي هغوی ته به ښکاره کیږي .
- په عورت غلیظه باندې به یې څه ټوټه ور واچوي چې نه ښکاره کیږي.
- هغه کس چې غسل ورکوي په لاس به څه ټوټه تاو کړي او تر هغه ټوټې لاندې چې په شرمګاه یې ور اچولې لاندې به لاس ننباسي استنجاء به ور ووهي دا مستحب ده .
- چې ضرورت یې نه وي غسل ورکونکی به یې زنګنونو او نورو د عورت ځایونو ته نه ګوري .
- بیا به ورته داسې اودس ور وکوي لکه مانځه ته چې اودس کوي او که داسې ماشوم وو چې تر اوسه لا په مانځه نه وو دریدلی نو د اودس ورکولو ضرورت یې نشته .
- په اوداسه کې به یې د مخ د وینځلو نه شروع وکوي .
- اول به ښې اندامونه ور وینځي په خوله او په پوزه به اوبه نه ور تېروي همدارنګه د سر مسح یې هم نشته .

⇦ د سر او د نارينه مړي د ږيرې ويښته دې په صابون يا په بل دېته ورته پاکونکي شي باندې ووينځي ترڅو ښه پاک شي .

⇦ بيا به يې په چپ طرف څملوي او اوبه به وربانديې واچوي تردې چې يقيني کړي چې اوبه ترېنه ښکته لور ته ورسېدې نو به يې په ښي اړخ څملوي او په همدې ډول به اوبه وربانديې واچوي.

⇦ بيا به يې سر طرف لږ را پورته کړي او په ګېډه به يې ورو لاس را کش کړي که کوم شی ترې وزي نو ترېنه وبه وزي او د کفن د ګنده کېدلو احتمال به کم شي که کوم شی ترينه ووتل صرف هغه به ووينځي د غسل يا اوداسه را ګرځول ضروري نه دي.

⇦ د مړي ږيره او يا ويښته ګمنځ کول يا يې د تخرګونو او شرمګاه ويښته لرې کول او يا يې نوکان اخستل ضروري نه دي . (محيط السرخسي)

که د مړي په مخ يا پوزه کې يا غوږ کې يا په بل کوم ځای کې پخته ور ايږدي نو ناروا نه دي . (التبيين)

⇦ کوم مړی چې په اوبو کې پيدا کړل شو چې را وويستل شي هغه ته به هم غسل ورکول کيږي او که چېرته د را ويستلو په وخت کې په اوبو کې د غسل په نيت و ښورول شو نو بيا ضروري نه دی چې غسل ورکړي. (محيط السرخسي)

⇦ که د مړي بدن خراب شوی وو او لاس ور باندې نه وهل کېدلو یا یې ددې وېره وه چې د لاس لګولو سره به یې غوښې و ریږیږي نو صرف اوبه دې وربانديې واچوي.

⇦ هغه ماشوم چې پیدا شي او د پیدا ئښت په وخت کې اواز وکوي او یا داسې حرکت وکوي چې ترېنه معلوم شې چې دا ماشوم ژوندی دی نو نوم به وربانديې کیږدي غسل به ورکړي او مونځ به وربانديې وکوي او که یې اواز نه وو ویستلی نو په یوه ټوټه کې به تاو کړل شي مونځ نه وربانديې کیږي او غسل به ورکړل شي. (عالمګیري)

⇦ او پدې اړه چې ماشوم د پیدا کېدلو نه وروسته څه اواز وویستلو او یا یې حرکت وکولو د هغې ښځې قول په ګواهي کې کافي دی چې د پیدا کېدلو په وخت کې د ماشوم کتنه کوي او له مور سره د ماشوم په پیدا کولو کې مرسته کوي.

⇦ هغه نیمګړی نقصان شوی ماشوم چې پداسې حالت کې پیدا شي چې اندامونه یې لا پوره نه وي جوړ شوي هغه به وینځي او په یوه ټوټه کې به یې تاو کړي او خښ به یې کړي . (فتاوی قاضي خان)

⇦ که یو مړی پیدا شو او دا نه وه معلومه چې مسلمان دی که کافر که د اسلام کومه نښه ور باندې وه نو مونځ به وربانديې وشي او د

مسلمان مړي رويه به ورسره وشي او همدارنګه که د مسلمانانو د کورنو په چاپېريال کې پيدا شو نو مسلمان به ګڼل کيږي.

⇦ که څوک د بغاوت په حالت کې يا د لارې د پرې کولو (غلا کولو) په حالت کې مړکړل شي په هغه به مونځ نه کيږي او نه به غسل ورکول کيږي.

⇦ مړي ته د غسل ورکولو په وخت غوره خبره ده چې هغه کس غسل ورکړي چې دده نېږدې خپلوان وي او که هغه نشواى کولى نو بيا ښه خبره ده چې تقوى لرونکى څوک ورته غوره کړي .

⇦ که د غسل ورکولو په وخت کې غسل کونکى جنب او يا حائضه وي نو غسل ورکول مکروه دي او که صرف اودس يې نه وو نو بيا مکروه نه دي .

⇦ غسل کونکى چې په مړي کې کوم ښه صفات وويني لکه د مخ ځلا د بدن ښه بوى او داسې نور نو مستحب ده چې خلکو ته ووايي او که ددې په عکس يې پکې بد صفتونه وليدل نو پټول يې مستحب دي او ښکاره کول يې او خلکو ته يې قصه کول مکروه دي.

⇦ که د غسل په وخت کې د غسل د ځاى سره نېږدې د خوشبويي انتظام وکوي نو غوره خبره ده که د مړي د بدن نه کوم بوى پورته کيږي نو غسل ورکونکى او ورسره مرسته کونکي خلک به د کار څخه نه ستومانه کيږي.

⇦ هغه څوک چې غسل ورکوي د هغه لپاره غوره خبره داده چې بې پيسو يې ورکړي لکن که بيا

هم ده پيسې غوښتلې که دده نه بغير دلته داسې څوک وو چې غسل يې ورکولی شول نو ده ته پيسې اخستل روا دي او که دده نه بغير څوک نه وو نو بيا ده ته روا نه دي چې دی وربانديې پيسې واخلي ځکه بيا خو دده وظيفه ده او په ده باندې کول يې لازم ګڼل کيږي. (الظهيرية)

⇦ ښځې ته به نورې ښځې او سړي ته به نور سړي غسل ورکوي او سړي ښځې ته او ښځې سړي ته غسل نشي ورکولی که داسې وړوکې ماشومه وه چې عمر يې ډير کم وو او اجنبي سړی يې چې وينې اشتها ورته نه راځي نو بيا که سړی ورته غسل ورکړي نو خير دی او همدارنګه که وړوکي ماشوم ته ښځه غسل ورکړي نو خير دی .

⇦ خاوند چې مړ شي ښځه غسل ورکولی شي ځکه دا اوس هم د عدت تر تيريدلو پورې لا بل خاوند نشي کولی ګواکې چې تر اوسه پورې د هغه نکاح تر تاثير لاندې ده او کله چې ښځه مړه شي نو خاوند ورته غسل نشي ورکولی. (السراج الوهاج)

⇦ که کافر مړ شو او دده خپلوان مسلمان وو نو هغه ته به غسل ورکړي داسې غسل به نه ورکوي لکه مونږ يې چې مسلمان مړي ته ورکوو بلکه داسې به يې وويڅي لکه مرداره جامه او په يوه ټوټه کې به يې تاو کړي او خښ به يې کړي

په قبر کې به يې هم په سنت طريقه نه ايږدي صرف پکې ور وبه يې غورځوي.

## مړي ته کفن ورکول

⇦ مسلمان مړي ته کفن ورکول هم فرض کفايي دي. (فتح القدير)

⇦ د نارينه لپاره سنت کفن قميص، ازار او لفافه دي او که سختي وه رخت نه پيدا کېدو نو بيا ورته لفافه او ازار هم کفايت کولی شي. (کنز الدقائق)

ازار : دا يوه جامه وي چې مړی له سر نه تر پښو پورې پکې پټ شي .

لفافه : هم همداسې جامه ده چې مړی به له سر نه تر پښو پورې پکې پټ شي .

قميص : دا يوه جامه ده چې مړی د غاړې نه تر پښو پورې پکې پټ شي (هداية)

⇦ په قميص کې به جيبونه، لستوڼي ، څاکونه و غيره نه جوړوي صرف داسې به يې جوړ کړي چې سر يې ترېنه بهر شي او نور ځان يې تر قدمونو پورې پکې پټ شي .

⇦ په کفن کې لُنګۍ نشته لکن صاحب العلم چې وفات شي لنګۍ وهل ورته ښه ګڼل شوي دي.

د زنانه وو لپاره کفن پنځه ټوټې سنت دي .

قميص: هماغه اندازه قميص دی چې د نارينه په کفن کې تېر شو .
ازار: لکه مخکې چې تېر شو دا يوه ټوټه ده چې له سر تر پښو پکې مړی پټ شي
ټکری: د قميص نه وروسته يې په زنانه مړي ور اچوي چې مخ يې هم پکې پټ شي .
لفافة: تر ټولو لويه ټوټه وي چې د ټولو ټوټو په سر ور آغوستله کيږي
سينه بند : يوه بله ټوټه وي چې په سينه يې کلکه ور وتړي .

⇦ او که چېرته ضرورت وو او د رخت پيدا کېدل مشکل وو نو ازار، ټکری، لفافه کفايت کوي او ترڅو چې سخت ضرورت نه وي نو د ښځې ته به دوه ټوټې او سړي ته به يوه ټوټه کفن نه ورکوي.
⇦ هغه ماشوم او ماشومه چې بلوغ ته نېږدې وي حکم يې د بالغ دی او که ما شوم وړوکی وي نو دهغه د نارينه لپاره يوه ټوټه او د ماشومې لپاره دوه ټوټې کفن هم کفايت کوي.
⇦ کفن صرف د تافتې نه جوړول ضروري نه دي بلکه د ښه رخت نه به يې ورته جوړوي. (عالمګيري)
د هغه رخت نه به يې ورته جوړوي چې ده به په ژوند کې آغوستلې د زنانه لپاره به هم کفن

له داسې جامې نه جوړوي چې دې به په ژوند کې د ښو جامو په ډول جوړولې. (عالمګیري) د کفن رنګ سپین او د پختې (مالوچو) د رخت نه مستحب دی.

⇦ د کفن څخه وړاندې د سړي په بدن وېښتو او ږیره کې ورته خوشبویي لګول مکروه نه دي زعفران لګول وربانډې مکروه دي لکه په ژوند کې یې چې استعمال ورته مکروه وو.



# د کفن ورکولو طریقه

قمیص به اوږده توته وي په مینځ کې به یې قات کړي او د سر د ننه ایستلو لپاره به پکې ځای جوړ کړي لکه په راتلونکي شکل کې ښکاره کیږي.
اول به لفافه بیا ازار او بیا قمیص په راتلونکي ډول په هموار ه زمکه خپاره کړي:



د قمیص د دوه پټونو څخه به یو پټ پورته کړي .




هغه پورته شوی طرف به سر طرف ته ټول پرېږدي او یا به یې سره ونغاړي .



مړى به د قميص د يوې ټوټې په سر پداسې ډول ور كيږدي چې هغه بله ټوټه وربانديې په سر را واچوي نو سر يې تر هغه سوروي ووزي چې مخكې يې ورته پكې جوړ كړى دى .




د قميص پورته شوې برخه به وربانديې را هموراه كړي .



اول بــه د چپ (ګس) طرف نـه بـیـا د ښي طرف نـه بـه ازار وربـانـدې را ونـغـاړي .




د ټـولـو نـه پـه آخر کې بـه لـفـافـه اول د چپ طرف نـه بـیـا د ښي طرف نـه را ونـغـاړي او کـه د خلاصېدلـو یـا د کـفـن د خـپـرېـدلـو خطر وو نـو پـه سر او پـښو کـې بـه یـې پـه ټـوټـه وتـړي .



نکته : د زنانه په کفن کې دوه ټوټې زیاتې دي یوه سینه بند او بله ټکری ټکری به د قمیص نه د پاسه واچوي بیا به ازار اول د چپ بیا د ښي طرف نه را ونغاړي بیا به لفافه په همدې ډول وربانديې را ونغاړي او په آخر کې به په سینه بند باندې د ټولو کفنونو په سر د سینې ساحه وتړي. (عالمګیري)

⇦ د ښځې ویښته به دوه ټوټې کړي یوه ټوټه په یو او بله به په بل طرف په سینه باندې د قمیص د پاسه را پریږدي.

⇦ که څوک مړ شي او د کفن پیسې ورڅخه نه وې پاتې شوې نو کفن یې په هغه چا دی چې په چا یې نفقه وي او که د هغوی سره هم پیسې نه وي نو بیا به یې د تکفین او تجهیز مصارف له بیت المال څخه کیږي.

ربنا افرغ علينا صبرا وتوفنا مسلمين

# د جنازې مونځ

⇦ د جنازې مونځ فرض عين دى كه يو څه كسان يې وكوي د ټولو خلكو غاړه پرې خلاصيږي او كه هېڅوک يې ونه كوي نو ټول خلک ګنهګار كيږي.

⇦ د مانځه لپاره د مړي اسلام او د هغه پاكي شرط ده ترڅو چې سخت ضرورت او عذر نه وي نو د غسل نه بغير به مونځ وربانديې نه كوي.

⇦ كه اول وربانديې مونځ وشو او بيا غسل وركړل شو مونځ به بېرته را ګرځوي .

⇦ هغه څوک چې مسلمان پيدا شوى وي كه لوى وي كه وړوكى كه نارينه وي او كه ښځينه كه اصيل وي او كه غلام مونځ به وربانديې كيږي صرف هغه كسان چې باغيان وي او يا قطاع الطريق (غلا كونكي) وي هغوى چې ووژل شي او يا مړه شي په هغوى بانديې به مونځ نه كيږي.

⇦ هغه څوک چې ځان پخپله قصداً ووژني هم مونځ به وربانديې كېږي.

⇦ كه موجود وي نو د جنازې د مانځه د امامت لپاره تر ټولو نه بادشاه غوره دى بيا قاضي بيا امام او كه دا هېڅوک موجود نه وو بيا يې نېږدې خپلوان او په خپلوانو كې چې ډېر ورته نېږدې وي اول د هغه حق دى چې دده د جنازې امامت وكوي او كه پلار او زوى يې دواړه موجود وو نو پلار به يې امامت كوي.

- مړی به په زمکه باندې کېښودل شوی وي د خلکو په لاسونو کې یا په کوم شي باندې به بار کړل شوی نه وي.
- امام به د مړي د سینې په برابر درېږي دا سنت دي .
- د اول تکبیر نه وروسته ثناء ویل هم سنت دي
- د جنازې په مانځه کې درود ویل هم سنت دي .
- د جنازې په مانځه کې مړي ته دعا کول هم سنت دي.
- د جنازې مونځ څلور تکبیره دی که یو تکبیر هم پاتې کړل شي نو د جنازې مونځ نه کیږي .

إن للمتقين مفازا

## د جنازې د مانځه طریقه

لکه مخکې چې تېر شول د جنازې په مانځه کې څلور تکبیرونه دي چې یو هم کم شي نو د جنازې مونځ نه کیږي کله چې د جنازې د مانځه وخت شي نو صفونه به برابر کړل شي او کوښښ به کیږي چې صفونه باید طاق شي که ډېر کم خلک وي نو صرف په یوه صف کې د ودریږي که لږ زیات وي نو درې یا پنځه په همدې ترتیب .

امام به اواز وکوي چې نیت کوئ خلک به نیت وکوي چې د زړه پوره توجه د جنازې مانځه ته برابره کړي نو کافي دي او که نشي کولی نو په خوله دې ورسره نیت ووایي که په عربي نیت کولی شي نو په لاندې ډول به نیت وکوي .

**نويت ان ادء اربع تكبيرات صلات الجنازة و الصلاة للرسول و الدعاء لهذ الميت (د مونث لپاره لهذه الميت) اقتديت بهذ الامام متوجهاً الى جهة الكعبة الشريفة .**

☚ او که په عربي یې نشي کولی په خپله ژبه به نیت وکوي:

نیت مې کړی دی چې د جنازې مونځ د څلورو واړو تکبیرونو سره وکوم اقتداء کوم پدې حاضر امام پسې مخ مې د کعبې شریفې په لوري . او یا دېته ورته الفاظ چې څنګه ده ته اسان وي.

☚ امام به الله اکبر ووایي ټول خلک به غوږونو ته لاسونه یوسي او الله اکبر به پټ ووایي بیا

به لاسونه تر نو (نوم) لاندي کيږدي او وبه وايي :

**سُبحَانَکَ اللَّهُمَّ وَ بِحَمدِکَ وَ تَبَارَکَ اسمُکَ وَ تَعَالَى جَدُّکَ وَ جَلَّ ثَنَاءُکَ وَ لا اِلَه غَيرُک.**

- بيا به امام دوهم تکبير ووايي او خلک به پټ ورسره الله اکبر ووايي لاس به پکې نه پورته کوي لاس پورته کول صرف په اول تکبير کې وو بيا به دردود شريف ووايي:

**اللَّهُمَّ صَلِّ عَلَى مُحَمَّدٍ وَ عَلَى آلِ مُحَمَّدٍ کَمَا صَلَّيتَ و سلمت و رحمت و ترحمت عَلَى اِبرَاهِيمَ وَ عَلَى آلِ اِبرَاهِيمَ اِنَّکَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ. اللَّهُمَّ بَارِک عَلَى مُحَمَّدٍ وَ عَلَى آلِ مُحَمَّدٍ کَمَا بَارَکتَ عَلَى اِبرَاهِيمَ وَ عَلَى آلِ اِبرَاهِيمَ اِنَّکَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ.**

- بيا به امام دريم تکبير ووايي خلک به پټ الله اکبر ورسره ووايي او لاسونه به په خپل ځای نيولي وساتي بيا که مړی بالغ وو نو لاندې دعا به ووايي :

**للَّهُمَّ اغفِر لِحَيِّنَا وَ مَيِّتِنَا وَ شَاهِدِنَا وَ غَائِبِنَا وَ صَغِيرِنَا وَ کَبِيرِنَا وَ ذَکَرِنَا وَ اُنثَانا، اللَّهُمَّ مَن اَحيَيتَهُ مِنَّا فَاَحيِهِ عَلَى الاِسلامِ وَ مَن تَوَفَّيتَهُ مِنَّا فَتَوَفَّهُ عَلَى الاِيمَان.**

- او که نا بالغ هلک وو نو لاندې دعا به وايي :

اللَّهُمَّ اجعَلهُ لَنَا فَرَطاً وَ اجعَلهُ لَنَا اَجراً وَ ذُخرَاً وَ اجعَلهُ لَنَا شَافِعَاً وَ مُشَفِّعاً.

- او كه نا بالغه جينۍ وه نو لاندينۍ دعا به ووايي :

اللَّهُمَّ اجعَلهَا لَنَا فَرَطاً وَ اجعَلهَا لَنَا اَجراً وَ ذُخراً وَ اجعَلهَا لَنَا شَافِعَةً وَ مُشَفِّعَةً.

- بيا به امام څلورم تكبير ووايي پدې ځاى كې هېڅ ډول دعا نشته صرف انتظار به وكوي چې امام سلام وګرځوي د څلورم تكبير نه به وروسته امام اول ښي او بيا چپ طرف ته سلام وګرځوي او وبه وايي

السَّلامُ عَلَيْكُمْ وَ رَحْمَةَ الله

- چې دواړو طرفونو ته امام سلام وګرځوي بيا به خلك هم ښي او چپ طرف ته سلام وګرځوي كه چېرته امام سهو شي او پنځم تكبير ووايي خلك به يې ورسره نه وايي بلكه خلك به صرف امام ته انتظار وكوي چې هغه سلام څه وخت ګرځوي.
- كه امام سهو شو او د دريم تكبير نه يې وروسته سلام وګرځولو نو خلك به له ځان سره څلورم تكبير ووايي او بيا د سلام وګرځوي له امام سره به سلام نه ګرځوي. (التتارخانية)
- كه څوك راغلل د هغه نه په جنازه كې لمړى تكبير تېر شو نو پاتې د جنازې مونځ به له امام سره وكوي چې كله امام سلام وګرځوي له

ځان سره دې په پټه سره تېر شوی تکبير هم ووايي لکن که د سلام اړولو سره سم جنازه پورته شوه تر هغې دې وروسته بيا نه وايي .

- او که څوک د جنازې مانځه ته پداسې حالت کې راغلل چې امام څلورم تکبير هم ويلی وو لکن سلام يې نه وو ګرځولی نو بيا د له امام سره په جنازه کې نه شريک کيږي .
- که په يو ځای باندې متعددې جنازې جمع شوې وې نو د امام خوښه ده که په ټولو باندې په يو ځای مونځ کوي او که په هر يو باندې بېل بېل مونځ کوي او که متعد ډوله مړي وو نو د امام طرف ته به پداسې حال ترتيب کيږي لکه دوی چې ژوندي وو په امام پسې يې چې مونځ کولو په څه ډول يې په امام پسې صف جوړولو اول به د امام مخې ته نيږدې غوره نارينه سړی او بيا نور سړي بيا ماشومان بيا ښځې کيږدي .
- که امام په يوه جنازه باندې مونځ شروع کړی وو بله راوړل شوه نو امام به خپل مونځ روان ساتي او په دوهمه باندې به يې له سر نه بيا وکوي .
- که کوم مړی د مانځه نه بغير دفن کړل شو نو تر دريو شپو پورې چې موقع برابره شوه نو په قبر يې دې مونځ وکوي او که تر دريو شپو تېر شو نو بيا يې د ورباندې نه کوي .

# قبر

⇦ په قبر کې مړي خشوع هم فرض عين دي که ځينې يې خښ کړي د ځينو نورو وربانديې غاړه خلاصيږي او که بالکل د خشوعو نه بغير پاتې شي ټول خلک ورسره ګنهګار کيږي.

د قبر دوه طريقې دي :

**شق** : دېته وايي چې په زمکه کې ځای ژور کړل شي او بيا د ننه پکې د مړي د کېښودلو ځای جوړ کړل شي چې کله پکې مړی کېښودل شي بيا وربانديې لر لوړ تختې کېښودل شي او بيا وربانديې خاورې واړول لکه په لاندې تصوير کې د شق شکل ښکاره کيږي .



او لحد بيا دېته وايي چې يو ځل يې مخامخ ژور کړي او بيا يې طرف ته پکې گور جوړ کړي او مړی

په هغه ګور کې کېږدي او مخې ته ورپسې د کاڼي تبۍ کېږدي او بیا یې د خاورو نه ډک کړي د لحد مثال په لاندې تصویر کې وګورئ.



قبر به څومره ژور وي؟ چې د مینځني قد لرونکی انسان پکې ودرېږي نو تر سینې پورې به یې کېږي او که ددېنه زیات یې ژور کړي نوره هم ښه خبره ده او اوږد والی به یې د مړي د اوږدوالي نه یو څه زیات وي چې هغه په اسانه سره پکې کېښودل شي او عرض (پلنوالی) به یې د عام تابوت د اوږدوالی د نیم په اندازه وي .

- که مړی د تابوت سره خښول کیږي نو خیر دی لکن که د وسپنې د تابوت سره یې خښوي په تابوت کې د ننه به شاوخوا ته ورسره خاوره اچوي .
- په قبر کې د ننه به پخه خښته پداسې ځای نه استعمالوي چې د مړي سره ولګیږي دا مکروه ده (عالمګیري) .
- هغه کسان چې په قبر کې مړی ښکته کوي ښه خبره ده چې نیږدې خپلوان یې وي او ښځه به یې محرمین (محرم خلک) قبر ته ورښکته کوي او که محرم یې نه وو موجود نو که پردي سړي یې قبر ته ور ښکته کړي هم نا روا نه ده .
- ترڅو پورې چې سړي وي نو ښځه به په هیڅ صورت قبر ته نه ور داخلیږي .
- مړی به قبر ته د کعبې له لوري نه ور ښکته کوي یعني د قبر نه بهر به د قبلې لوري ته کېښودل شي او له هغه ځای نه به د یو څو تکړه کسانو په وسیله قبر ته ور ښکته کړل شي .
- چې کله په قبر کې کېښودل شي نو د سر او پښو نه به یې غوټې خلاصې کړي تختې به ښې سمې ورپسې کېږدي او کوښښ به کوي چې خاوره د ننه ور تویې نه شي .
- د ټولو طرفونو څخه به ورباندې خاورې واړوي او څومره خاوره چې له قبر نه را ویستل شوې

همدومره به وربانديٍ واړوي د لوړلو لپاره به اضافي خاوره وربانديٍ نه اړوي.

⇦ كه د شپې يې خښوي ا و كه د ورځې كراهيت پكې نشته . (عالمګيري)

⇦ په قبر بانديٍ به خاوريٍ ښې برابريٍ كړي كه په لاس سره وي او كه په كوم شي سره وي .

⇦ كه د خاورو د برابرولو نه وروسته په قبر بانديٍ اوبه وشيندي كراهيت پكې نشته. (عالمګيري)

⇦ په قبر بانديٍ ابادي كول ، په قبر كيناستل، په قبر ور ويده كيدل په قبر بانديٍ د پاسه ګرځيدل، په قبر بانديٍ ليكل كول او د قبر په خوا كې قضاء حاجت كول مكروه دي. (التبيين)

⇦ كه د وخت په تيريدلو سره قبر خراب شي او د وركيدو ويره يې وي كه بيرته خاوريٍ پريٍ ورټولې كړي او يا خټه وركړي نو مكروه نه ده . (التتارخانية)

⇦ په كومه هديره كې چې نيكان خلك ډير دفن شوي وي هلته دفن كول غوره خبره ده .

⇦ د مړي د خښولو نه وروسته به يوه لحظه د قبر سره كيني دومره وخت لكه يو اوښ چې حلاليږي او دهغه غوښه تقسيم كيږي تيرول مستحب دي پديٍ وخت كې به تلاوت كوي د مړي په حق كې به دعا غواړي او بيا به ترينه روان شي.

⇦ د قبر په خوا کې دریدل او د قبر په خوا کې د الله تعالی نه د ځان لپاره او د صاحب القبر لپاره دعا غوښتل مکروه نه دي .

⇦ ترڅو چې سخت ضرورت نه وي څو کسان به په یو قبر کې نه خښول کیږي او که ضرورت وو نو پداسې ترتیب به کېښودل شي لکه د مانځه لپاره چې صفونه جوړیږي اول مشر نارینه بیا ماشومان بیا زنانه او د هر دوو کسانو په مینځ کې به د خاورې پوله ورکول کیږي.

⇦ هغه څوک چې د خپل ځای نه لرې په حق ورسیږي نو چې په کوم ځای کې په حق رسېدلی وي دهماغه ځای په هدیره کې یې خاورو ته سپارل مستحب دي.

⇦ مړی چې یو ځل خښ کړل شي بېرته راویستل یې مکروه دي مګر که ښکاره شوه چې دا زمکه په زور نېول شوېده غصب شوېده نو بیا یې که وباسې مکروه نه ده .

⇦ که د چا په زمکه کې دده د اجازې نه بغیر څوک خښ کړل شول اوس دده خوښه ده یا د ورثه څخه وغواړي چې هغوی خپل مړی دده له زمکې څخه و باسي او که یې خوښه وه نو اجازه د ورکړي چې مړی دده په زمکه کې پاتې شي.

⇦ که په غلطي سره مړی د قبلې نه بل لوري ته کېښودل شوی وو او یا د سر طرف ته یې د مړي پښې کړې وې یا یې په قبر کې په چپ اړخ

ځملولی وو او خاورې وربانديې واړول شوې نو اوس يې دې بېرته نه را وباسي او که صرف د تېږو تختې وربانديې کېښودل شوې وې او خاورې وربانديې نه وې اړول شوې نو تختې به ورځخه لرې کړې او د سنتو برابر يې دې کېږدي.

⇦ که د چا نه څه قيمتي سامان په قبر کې وغورځېدو او هغه وخت ور په ياد شو چې خاورې وربانديې اړول شوې وې نو خېر دی را لوځ د کړل شي. (فتاوی قاضي خان)

⇦ په هدېره کې د موجوده بوټيو او ونو پرې کول مکروه دي او که وچ وي نو بيا يې پرې کول او د خپلو ضرورتونو لپاره استعمالول مکروه نه دي .

⇦ په قبرونو چې نه خيږي نو په هدېره کې تلل مکروه نه دي .

⇦ هغه کس چې مصيبت ورته پېښ شوی وي د هغه سره غمرازي ښکاره کول ښه خبره ده او هېڅ کراهيت پکې نشته. (الظهيرية)

⇦ تر دريو شپو او ورځو پورې چاته د مړي دعا او دهغه سره غمرازي ښکاره کول مکروه نه دي دهغې نه وروسته مکروه دي په هغه صورت کې مکروه نه دي چې تعزيه کونکی او يا د غم ځښتن په سفر تللی وي موجود نه وي کله چې را وګرځي نو بيا ورته دعا کولی شي .

- په دعا کې مستحب ده چې مړي ته د بښنې او مغفرت او چاته چې دعا کیږي ده ته د صبر او استقامت دعا وکول شي .
- که د کوم مسلمان له خپلوانو څخه څوک کافر مړشوی وي ده ته به دعا کیږي او هغه کافر مړي ته به د بښنې دعا نه کیږي .
- که د مصیبت خلک په کور کې یا په جومات کې تر دریو ورځو پورې کیني نو ګناه پکې نشته چې خلک راشي او دوی ته تعزیه وکوي لکن په دروازه کې به نه کیني او نه به په لاره کې کیني . (عالمګیري)
- په خزانة الفتاوی کې لیکلي دي : که څوک تردې دریو ورځو پورې هم د خلکو لپاره نه کیني نو غوره ده او که کیني روا ده .
- د مصیبت په وخت کې په زوره ژړا ، چیغې وهل، ځانونه وهل، لکه ښځینه یې چې کوي د ویښتانو شکول او ځانونه په زمکه غورځول سینې وهل مخونه وهل دا ټول مکروه دي که بیغیر د اواز نه په مړو اوښکو ژاړي نو مکروه نه دي.

وَلَا تَقُولُوا لِمَنْ يُقْتَلُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَمْوَاتٌ بَلْ أَحْيَاءٌ وَلَٰكِنْ لَا تَشْعُرُونَ

## شهید

- دا هغه کس دی چې کفار، باغیان، غله، قطاع الطریق یې ووژني او یا یې د وژل کېدلو وخت ښکاره نشي لکن د جنګ په میدان کې مړ پیدا کړل شي چې تر پوزو غوږونو یې وینه وتلې وي او یا د سوزېدلو یا د بل څه نه د زخمې کېدلو اثر یې په بدن کې ښکاره وي.
- یا یې کفار ژوندی ونیسي او په مختلف ډول تکلیفونو یې ووژني همدارنګه هغه مسلمان چې نور مسلمانان یې په ظلم باندې ووژني او دهغه دیت واجب نشي (الکافي)
- همدارنګه هغه څوک چې د خپل ځان ، یا مال، یا کورواله، یا د نورو مسلمانانو په دفاع کې ووژل شي په هر ډول چې ووژل شي هغه شهید دی. (محیط السرخسي)
- که په یوه کښتۍ یا یوه موټر یا بل داسې شي کې مسلمانان وي کفارو وویشتل او په هغې کې

موجوده مسلمانان شهیدان شول او پدې کې اور ولګېدو او دا اور بل موټر یا بلې کښتۍ ته ورسېدو په هغې کې چې کوم مسلمانان دي هغوی ورسره ووژل شول دا ټول یو رنګه شهیدان دي .

⇦ همدارنګه د جهاد په دوران کې که مجاهد د خپل ملګري په سلاح ولګیږي او یا په خپله سلاح باندې ولګیږي دا هم شهیدان دي همدارنګه که د جهاد په دوران کې د خپلې سپرلۍ نه وغورځیږي او مړ شي دا هم شهید دی .

# د شهید احکام

⇦ شهید ته به غسل نه ورکول کیږي د جنازې مونځ به وربانډې کیږي .

⇦ شهید به د خپلو جامو او خپلو وینو سره خاورو ته سپارل کیږي که په جامه یې کومه ګندګي لګېدلې وه هغه به ترې وویننځله شي او هغه شیان چې اضافي دده سره وي او د رخت له جملې څخه نه وي لکه دده سلاح یا بل د څرمنې یا وسپنې څخه جوړ شی چې ده آغوستلې وي هغه به ټول ترینه وویستل شي که زیات شیان یې آغوستي وي لکه واسکټ جمپر او داسې نور هغه به ترې ویستل کیږي او که لوڅ وي نو بیا به کفن ورکول کیږي او که صرف یوه جامه یې په

ځان وه نو د سنت کفن تعداد جامې چې مخکې یې ذکر تېر شو ورپوره کړي .

⇦ که د جنابت په حالت کې یا د حیض او نفاس په حالت کې الله ① ورته شهادت ورکړو نو بیا به غسل ورکول کیږي.

⇦ که د جنګ له ځای نه ژوندی نقل کړل شو یا یې خوراک او څښاک وکول او یا یې د زخمې کېدو نه وروسته ارام وکولو ویده شو یا وربانديې علاج شروع شو او دوا یې وخوړه ددېنه وروسته په شهادت ورسېدو نو پدې صورتونو کې به غسل ورکول کیږي.

⇦ همدارنګه که د جنګ د میدان څخه یوې خېمې یا بل دېته ورته ځای ته نقل کړل شو او هلته دومره ژوندی پاتې شو چې د یوه مانځهٔ وخت وربانديې تېر شو او دی په هوش کې وو او بیا په شهادت ورسېدو دېته به هم غسل ورکول کیږي.

⇦ همدارنګه که د جنګ د ختمېدلو نه وروسته دومره وخت پاتې شو چې څه یې خرڅ کړل او یا یې واخیستل او بیا شهید شو نو غسل به ورکول کیږي او که جنګ لا روان وو نو بیا به هم ده ته غسل نه ورکول کیږي (التبیین)

⇦ همدارنګه که ددنیوي ژوند اړوند یې څه وصیت وکولو بیا به هم غسل ورکول کیږي .

⇦ که په خپله پاڅېدو له یو ځای نه بل ځای ته لاړو بیا به هم غسل ورکول کیږي .

⇦ که څوک د جنګ نه بهر د خپلې سپرلۍ نه وغورځېدو او په شهادت ورسېدو غسل به ورکول کیږي همدارنګه د جنګ نه بهر څوک د بل د چا د سپرلۍ تر پښو لاندې شول نو غسل به ورکول کیږي.

## د استخارې مونځ

⇦ کله چې انسان په کوم کار کې حیران پاتې شي او نشي کولی چې په کوم لوري باندې فیصله وکوي په داسې حالت کې چې انسان په دوو کې حیران شي تر ټولو غوره عبادت د استخارې مونځ دی حضرت رسول الله ﷺ فرمایي کله چې انسان د کوم کار کولو اراده وکوي نو دوه رکعته مونځ د وکوي او بیا د اللهم ..... (د استخارې دعا را روانه ده) ووایې :

⇦ چې کله انسان د استخارې دوه رکعته مونځ وکوي او بیا دهغې نه وروسته د استخارې راتلونکې دعا ووایې نو الله ① به هغه کار ته ورته لاره برابره کړي چې کوم دده لپاه په دین او دنیا کې غوره دی پاتې شوه ددېنه وروسته خوبونه لیدل او په خوب کې دده لپاره غوره کار ښکاره کېدل نشته او نه دا ضروري ده چې انسان به حتماً خوب و یني.

د استخارې په اړه یو څو نکتې .

- استخاره کول د هر کار لپاره غوره خبره ده که لوی وي که وړوکی .
- د استخارې د کولو په وخت به د استخارې کونکي یقین وي چې ددېنه وروسته به الله ماته د هغه لارې هدایت کوي چې کوم زما لپاره خیر وي.
- د استخارې دعا به د فرضو نه وروسته نه لوستل کیږي بلکه مستقل دوه رکعته مونځ به ورته اداء کیږي.
- که د سنتو او نفلو وروسته د استخارې دعا کول غواړې نو بیا هم استخاره صحیح ده لکن پدې شرط چې په مانځه کې د داخلېدلو نه وړاندې به ده د استخارې نیت ورته کړی وي او کنه نو بیا استخاره نه صحیح کیږي.
- که په داسې وخت کې استخاره کول په کار وو چې په هغه وخت کې مونځ مکروه وو (د سحر لمر ختلو په وخت، د لمر د استواء یعني د غرمې په وخت او د لمر لوېدلو په وخت) نو صبر به وکوي چې د کراهیت وخت ختم شي بیا به د استخارې مونځ وکوي او استخاره به وکوي .
- که په داسې حالت کې وو چې مونځ یې نشوای کولی د مثال په توګه لکه د زنانه چې د حیض یا نفاس شپې وې نو صبر د وکوي چې پاکه شي نو بیا دې استخاره وکوي او که هغه کار عاجل وو دې ورته صبر نشوای کولی نو بیا د صرف دعا وکوي مونځ د ورته نه کوي.

- ⇦ که د استخارې دعا ورته یاده نه وه نو د کاغذ نه دې ووایي لکن غوره خبره داده چې یاده یې کړي .
- ⇦ که د استخارې دعا د التحیات لله نه وروسته په مانځه کې ووایي هم روا ده .
- ⇦ د استخارې کولو نه وروسته یې چې کوم لوري ته رایه لاړه په هماغه به عمل کوي د خوب لیدو انتظار به نه کوي .
- ⇦ که د استخارې نه وروسته هم هماغه شان په دواړو کې حیران وو نو استخاره دې بیا وکوي او په مانځه کې دې له مخکې نه زیات د ښه کولو کوښښ وکوي.
- ⇦ په دعا کې به له ځانه کوم شی نه زیاتوي او نه به یې له نقل شوې دعا څخه کموي(وروسته به را شي)
- ⇦ د استخارې نه وروسته چې کوم لوری درته ښه ښکاره شو په هماغه عمل کول په کار دي که وروسته ستا نفس هرڅو ته بل لوري ته کش کولې نو هماغه لوری به ستا لپاره خیر وي چې کوم ته ستا رایه تللې وه.
- ⇦ د استخارې نه وړاندې د تجربه لرونکو خلکو سره مشوره کول ښه خبره ده .

## د استخارې په اړه مسئلې

- ⇦ استخاره بالاجماع سنت ده

⇦ د استخارې لپاره د فرضو نه بغير دوه ركعته مونځ كول دي .

⇦ كه استخاره وړاندې كوي او كه د تجربه لرونكو سره مشوره وړاندې كوي نو دواړه صحيح دي.

⇦ د استخارې دعا كه د سلام نه وړاندې په مانځه كې وايي او كه يې د سلام نه وروسته وايي دواړه صورتونه يې روا دي.

⇦ كه د سلام نه وروسته دعا كوي كه لاس پكې پورته كوي او كه يې نه پورته كوي دواړه صورتونه روا دي .

⇦ استخاره به په هغه كار كې كوي چې دده پكې شك وي او دى په خپل فكر غوره پكې نشي پيدا كولى او كه يو لورى يې ښكاره غوره وو نو بيا به پكې استخاره نه كوي.

⇦ په ضروري شيانو كې استخاره نشته د مثال په توګه زه زكات وركړم او كنه .. او داسې نور.

⇦ استخاره به هرڅوك د خپل ځان لپاره كوي د بل چا د مشكل لپاره استخاره نه كيږي .

⇦ كه د استخارې لپاره يې مونځ كول غوښتل او په مانځه كې يې په يو طرف د عمل كولو د ښه والي يقين راغلو نو مونځ به پوره كړي دا به دده لپاره نفل شي .

⇦ كه څو مختلف كارونه وو د ټولو لپاره يې ا ستخاره كول غوښتل نو د ټولو لپاره به يوه

استخاره کافي وي او که بېله بېله به ورته کوي؟
غوره داده چې د هر مشکل لپاره بېله استخاره وکوي او که يې د ټولو لپاره يوه وکوله هم صحيح کيږي.

## د استخارې کولو طريقه

⇦ دوه رکعته مونځ به وکوي او د مانځه له شروع نه به يې په نيت کې وي چې د استخارې لپاره مونځ کوم او د مانځه نه وروسته به راتلونکې دعا ولولي :

اللَّهُمَّ إنِّي أَسْتَخِيرُكَ بِعِلْمِكَ , وَأَسْتَقْدِرُكَ بِقُدْرَتِكَ , وَأَسْأَلُكَ مِنْ فَضْلِكَ الْعَظِيمِ فَإِنَّكَ تَقْدِرُ وَلا أَقْدِرُ , وَتَعْلَمُ وَلا أَعْلَمُ , وَأَنْتَ عَلامُ الْغُيُوبِ , اللَّهُمَّ إنْ كُنْتَ تَعْلَمُ أَنَّ هَذَا الأَمْرَ (دلته به د هغه کار نوم واخلي چې د کوم کار لپاره استخاره کوي ) خَيْرٌ لِي فِي دِينِي وَمَعَاشِي وَعَاقِبَةِ أَمْرِي أَوْ قَالَ : عَاجِلِ أَمْرِي وَآجِلِهِ , فَاقْدُرْهُ لِي وَيَسِّرْهُ لِي ثُمَّ بَارِكْ لِي فِيهِ , اللَّهُمَّ وَإِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ أَنَّ هَذَا الأَمْرَ (دلته به خپل کار ياد کړي ) شَرٌّ لِي فِي دِينِي وَمَعَاشِي وَعَاقِبَةِ أَمْرِي أَوْ قَالَ : عَاجِلِ أَمْرِي وَآجِلِهِ , فَاصْرِفْهُ عَنِّي وَاصْرِفْنِي عَنْهُ وَاقْدُرْ لِي الْخَيْرَ

حَيْثُ كَانَ ثُمَّ ارْضِنِي بِهِ . وَيُسَمِّي حَاجَتَهُ په يو روايت کې به (ثُمَّ رَضِّنِي بِه) هم ورپسې ووايي ( رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ)



# د تسبیح مونځ

⇦ دا یو هغه مونځ دی چې د بختورو خلکو زده وي او بختور خلک یې کوي رسول الله ﷺ په ډیره مینه خپل تره حضرت عباس ؓ ته ور شودلی دی او طریقه یې هم ورته ښودلې ده رسول الله ﷺ خپل تره حضرت عباس ؓ ته وفرمایل : آیا زه تاته داسې څه در نه کړم؟ داسې څه چې ته هغه وکوې الله تعالی ستا وړاندې وروسته ، هغه چې تا قصداً کړې وي او هغه چې لتا څخه په هېر سره شوې وي، وړوکي او لوی ، ښکاره او پټ ګناهونه ټول و بښي ؟ بیا رسول الله ﷺ ورته د تسبیح د مونځ طریقه ور ورښوده بیا یې ورته وفرمایل :

⇦ که کېدای شي دا مونځ په ورځ کې یو ځل وکوه، کنه نو په یوه هفته کې یې یو ځل کوه او کنه نو په میاشت کې یې یو ځل کوه او که دا د هم نشوای کولی نو په کال کې یې یو ځل کوه او که نه نو په عمر کې خو یې یو ځل ضرور وکوه (د ابي داود شریف د حدیث مطلب)

د تسبیح مونځ څلور رکعته مونځ دی په لاندې طریقه اداء کیږي.

☚ د څلورو رکعتونو نفل مونځ نیت به وتړي

- په عادي توګه به مونځ شروع کړي سبحانک اللهم ، بسم الله ، اعوذبالله ، الحمد لله او سورت به ولولي بیا به پنځلس ځله تسبیحات ووایي :

سُبْحَانَ اللهِ وَالْحَمْدُ للهِ وَلَاإِلٰـهَ إِلَّا اللهُ وَاللهُ أَكْبَرُ

- بیا به رکوع ته لاړ شي دری ځله به د رکوع سبحان ربي العظیم ووایي بیا به لس ځله همدا تسبیحات ووایي.
- بیا به د رکوع نه د سمع الله لمن حمده ربنا لک الحمد د ویلو نه وروسته لس ځله تسبیحات ووایي.
- بیا به سجدې ته لاړ شي د دری ځله سبحان ربی الاعلی ویلو نه وروسته به لس ځله تسبیحات ووایي.
- بیا به د سجدې نه جلسې ته را پورته شي بیا به لس ځله ووایي.
- په دوهمه سجده که به بیا د سبحان ربی الاعلی نه وروسته لس ځله ووایي.
- د دوهمې سجدې نه چې را پاڅیږي نو لږ به کینې لس ځله به تسبیح ووایي بیا به دوهم رکعت ته پاڅیږي .

نکته : ځینې علماء چې دلته کېناستل نه مني نو هغوی په قیام کې پنځلس ځله د سبحانک اللهم نه وروسته او لس ځله د قرائت نه وروسته تر رکوع وړاندې تسبیح وایي په قعده کې هغوی تسبیح نه

وایي او نه یې په اول رکعت کې د دوهمې سجدې نه د را پورته کېدلو نه وروسته وایي هغه طریقه هم صحیح ده او د ابي داود شریف په حدیث کې دا طریقه ده چې کومه پورته په تفصیل سره تېره شوه.

- دوهم رکعت ته چې پاځیږي نو بیا به د تلاوت نه وروسته لس ځله تسبیحات ووایي.
- د اولني رکعت په ډول به دوهم رکعت پای ته ورسوي لکن په دوهم رکعت کې به د تشهد نه وروسته لس ځله تسبیحات ووایي بیا به دریم رکعت ته پاځیږي نو پدې ډول به په هر رکعت کې ۷۵ ځله تسبیح او په ټولو څلورو رکعتونو کې ۳۰۰ ځله تسبیح پوره کړي او سلام به وګرځوي.

مسئلې:

- که په خوله باندې تسبیحات ورسره شماري او په خوله باندې عدد ورسره وایي نو مونځ فاسد کیږي.
- که په لاس کې تسبیح یا بل شی واخلي چې تسبیحات وربانديې شمار کړي نو مکروه دي نو ځکه د تسبیحاتو د شمارلو لپاره ښه لاره داده چې لاس یې چې په کوم ځای ایښی وي هماغلته دې یوې یوې ګوتې ته زور ورکوي.
- که په کوم رکن کې تسبیحات هېر شي او ونه ویل شي نو په ورپسې رکن کې به یې ووایي

یعني په ورپسې رکن کې به لس ور زیات کړي لکن په قومه او جلسه کې به یې نه زیاتوي یعني که په رکوع کې تسبیحات پاتې شول نو په قومه کې به یې نه راګرځوي بلکه په اوله سجده کې به شل ځله ووایي او که په اوله سجده کې پاتې شو نو په دوهمه سجده کې به یې شل ځله ووایي او که په دوهمه سجده کې پاتې شول نو بیا وروسته که ورپسې قیام وو هلته به لس ور زیات کړي او که ورپسې کېناستل وو نو تر التحیات وړاندې به یې ووایي.

⇦ که د تسبیح په مانځه کې سجده سهوه لازمه شي نو په سجده سهوه کې اوس تسبیح ویل ضروري نه دي ځکه تسبیح ۳۰۰ ځله ویل وو او هغه اوس پوره شوې دي .

## د حاجت مونځ

⇦ په سنن ترمذي ابن ماجه او داسې نورو کې د حضرت عبدالله بن ابي اوفى ❽ څخه روايت دى رسول الله ☸ فرمايي :

⇦ د چا چې الله ته او يا کوم بنده ته حاجت وي نو اودس دې وکوي او ښه اودس د وکوي بيا د دوه رکعته مونځ وکوي د مانځه نه وروسته دې د الله ① حمد ووايي په رسول الله ☸ د درود ووايي بيا دې دا دعا ولولي :

**لا إله إلا الله الحليم الكريم سبحان الله رب العرش العظيم الحمد لله رب العالمين أسألك موجبات رحمتك وعزائم مغفرتك والغنيمة من كل بر والسلامة من كل إثم لا تدع لي ذنبا إلا غفرته ولا هما إلا فرجته ولا حاجة هي لك رضا إلا قضيتها يا أرحم الراحمين.**

⇦ بيا د د خپل حاجت سوال وکوي الله به يې ورته پوره کړي که د دنيا سوال کوي او که د آخرت سوال کوي او دې مانځه ته د حاجت مونځ ويل کيږي په هغه وخت کې چې مونځ کول مکروه وي دا مونځ هم نه کيږي او پاتې نور شرطونه سنتونه ادبونه مکروهات او ماتونکي يې د عادي مانځه په ډول دې مخکې تېر شول.

## د څاښت مونځ

⇦ حضرت ابو هريره ❽ فرمايي ماته مې خپل ملګري (رسول الله ☸ ) په دريو شيانو امر کړی دی زه به يې کله هم نه پرېږدم

١. وتر به تر ويده کېدو وړاندې کوم.

٢. زه به د څاښت دوه رکته مونځ نه پرېږدم دا د پرهېزګاره خلکو مونځ دی.

٣. په مياشت کې به درې ورځې روژه نيسم .

⇦ د څاښت مونځ سنت مؤکد دی رسول الله ☸ وربانديې همېشه والی کړی دی او صحابه وو ته يې هم ددې په کولو تاکيد کړی دی .

د څاښت مونځ لږ تر لږه دوه رکعته دی او زيات تر زياته دولس رکعته دی که څوک دوه رکعته هم وکوي نو د څاښت مونځ يې وکولو او که څلور، شپږ، آته او هرڅو رکعتونه اداء کړي د مانځه د ډېر والي سره د ډېر ثواب مستحق ګرځي .

⇦ رسول الله ☸ هم يکې معلومه شمېره نه درلوده کله به يې څلور کول کله به يې دوه رکعته کول او د مکې د فتح په ورځ يې آته رکعته کړي وو .

⇦ د مسلم شريف په حديث کې دي چې رسول الله ☸ به د څاښت مونځ څلور رکعته کولو او کله به يې چې خوښه شوه وربانديې زيات به يې کړو.

⇦ لکن چې هرڅو رکعته کوي د هرو دوو رکعتونو څخه وروسته به سلام ګرځوي رسول الله ☸ فرمايلي دي : د شپې او ورځې مونځ دوه دوه رکعته دی .

⇦ د ځاښت د ماښځه وخت وروسته تر هغه شروع کيږي چې لمر يوه نيزه را پورته شي او کله چې د ماسپښين وخت شروع شي نو د ځاښت د ماښځه وخت ختميږي .



# د تهجد مونځ

⇦ د شپې مونځ کولو ته د تهجد مونځ ويل کيږي د شپې نفل کول يعني د تهجد مونځ کول د ورځې د مانځه څخه غوره دی رسول الله ﷺ فرمايي : د فرضو څخه وروسته غوره مونځ د شپې نفل دي .

⇦ رسول الله ﷺ فرمايي : تاسې د شپې مونځ وکوئ ځکه دا له تاسي نه وړاندې د نېکانو خلکو طريقه ده ستاسې رب ته ستاسې د نېزدېکت ذريعه ده، ستاسې د گناهونو پاکونکی دی، ستاسې د گناهونو څخه منع کونکی دی او له بدن څخه د بيماري شړونکی دی .

## د تهجد د مانځه وخت:

⇦ د شپې په هره برخه کې مونځ کيږي لکن غوره وخت يې د شپې آخري دريمه برخه ده حضرت عمرو بن عبسة ❽ فرمايي : ما له رسول الله ﷺ څخه واورېدل چې فرمايل يې: بنده الله ① ته تر هروخت نه زيات د شپې په اخري کې نېږدې وي که دی کولی شوای چې د هغه کسانو له جملې نه شې چې پدې وخت کې د الله ① ياد کوي نو شه .

⇦ د شپې مونځ هم لکه مخکې چې د څاښت مونځ تېر شو معلومه شمېره نه لري رسول الله ﷺ به کله آته رکعته کول او کله به يې تردې هم زيات کول لکه حضرت عائشه رضى الله تعالى عنها چې

فرمايي رسول الله ﷺ به د شپې اول څلور رکعته وکول د هغه د اوږد والي او ښه والي په اړه خو پوښتنه مه کوه (ډېر به په ښه توګه او ږده وو) بيا به يې څلور رکعته وکول دهغې خو د اوږدوالي او ښه والي په اړه پوښتنه مه کوه او بيا به يې درې رکعته وکول .

⇦ رسول الله ﷺ به کله بې شماره دوه دوه رکعته کول چې څومره به يې خوښه وه او خاص تعداد به يې نه وو معلوم .

⇦ د حضرت ابن عمر ❽ څخه روايت دی چې د رسول الله ﷺ په مجلس کې يو کس پاڅېدو ويې پوښتل يا رسول الله ! د شپې مونځ څنګه دی؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : دوه دوه رکعته .

⇦ د شپې په مانځه کې نارينه اختيار من دی که تلاوت پکې په جهر سره کوي داسې جهر چې څوک ترينه تنګ نشي او اواز يې ډېر په زوره نه وي او که يې په پټه سره کوي او که داسې څوک وي چې دده د تلاوت څخه په تنګ کيږي نو بيا به يې خامخا په پټه سره کوي .

⇦ چې ترڅو پورې کولی شي په نېک عمل باندې همېشه والی مستحب دی .

# د توبې مونځ

⇦ کله چې انسان په کومه ګناه کې واقع شي که لويه وي او که وړوکې نو توبه کول ورباندې واجب دي او مستحب دي چې اول دوه رکعته مونځ وکوي او بيا د الله ① په وړاندې توبه وباسي حضرت ابو بکر صديق ❽ فرمايي : ما د رسول الله ☸ څخه واورېدل چې فرمايل يې :داسې بنده نشته چې ګناه وکوي بيا ښه اودس وکوي او پاڅيږي دوه رکعته مونځ وکوي بيا له الله ☸ نه بښنه وغواړي مګر الله ورته بښنه کوي .

⇦ د حضرت ابي الدرداء ❽ څخه روايت دی هغه فرمايي : ما درسول الله ☸ څخه آورېدلي چې فرمايل يې: څوک چې ښه اودس وکوي بيا پاڅيږي دوه يا څلور (د راوي پکې شک دی) رکعته مونځ وکوي په هغه مونځ کې په ښه ډول سره ذکر او ښه عاجزي وکوي بيا د الله ① څخه بښنه وغواړي الله ① ورته بښنه کوي.

⇦ د توبې د مانځه لوی مقصد همدا دی چې د الله ① حضور ته د نېکو عملونو يوه ډالی وړاندې کړل شي ترڅو الله ① رحم وکوي او ګناه معاف کړي .

⇦ د توبې مونځ به هغه وخت کيږي کله چې بنده د خپلې ګناه نه توبې ويستلو ته تيار شو دا که د ګناه نه متصل وو او که يو څه وخت وروسته وو او د انسان چې په کومه ګناه آخته وي

هروخت هغه کولی شي توبه ترینه وباسي او الله ① يې توبه قبلوي ترڅو چې :

د انسان د ځانګدن وخت شوی نه وي او دده روح په وتلو شوی نه وي رسول الله ﷺ فرمايي الله د انسان توبه تر هغه وخته پورې قبلوي ترڅو چې ده د تنفس د وتلو د وخت غرغرې نه وي شروع کړې .

يا چې ترڅو لمر د مغرب د لورې څخه را ختلی نه وي هغه کسان چې په هغه وخت کې ژوندي وي چې د قيامت دا لويه نښه ويني نو چې لمر د مغرب (لمر لويده) لخوا را پورته شي نو د توبې دروازه نوره بنده شي رسول الله ﷺ فرمايي : هغه څوک چې مخکې ددينه چې لمر د مغرب له لوري نه را پورته شي توبه وباسي نو الله ① يې توبه قبلوي. (صحيح مسلم)

## د توبې د مانځه طريقه

- لکه د حضرت ابي بکر صديق ❸ په حديث کې چې تېر شول توبه کونکی به دوه رکعته مونځ وکوي .
- د مانځه نه وروسته به د خپلې ګناه نه په پاک نيت او د زړه د اخلاص نه توبه وباسي او د الله ﷺ نه به بښنه وغواړي .

⇦ پدې مانځه کې د رسول الله ﷺ څخه هېڅ کوم خاص صورت ندی نقل شوی لکه په عام مانځه کې چې

څه یې خوښه وي هغه تلاوت دې پکې وکوي د قرآن کریم د هرځای نه یې چې کوي.

⇦ هغه کس چې توبه ویستل وغواړي ددې مانځه سره سره به نور هم په نېکو عملونو کې زیات کوښښ کوي ترڅو یې پر مخ د الله ﷻ د رحمت دروازې را خلاصې شي.

# ماخذونه

- المبسوط للسرخسي
- شرح الوقاية
- حاشية ابن عابدين (رد المحتار على الدر المختار)
- غمز عيون البصائر في شرح الأشباه والنظائر
- العناية شرح الهداية
- فتاوای قاضیخان
- التتارخانية
- محيط السرخسي
- الهداية
- الكتاب
- اللباب في شرح الكتاب
- حاشية طحطاوي على المراقي
- فقه العبادات (حنفي)
- الاشباه و النظائر

- مراقي الفلاح
- الفتاوى الهندية (عالمگيري)
- تحفة الملوك
- البحر الرائق شرح كنز الدقائق
- جامع الرموز
- إرشاد أهل الملة إلى اثبات الأهلة
- المحيط البرهاني في الفقه النعماني
- الجامع الصغير
- شرح رائض الفرائض
- بدائع الصنائع
- تبيين الحقائق شرح كنز الدقائق
- المبسوط
- الإنتصار والترجيح للمذهب الصحيح
- مجمع الأنهر شرح ملتقى الابحر
- النافع الكبير
- نور الايضاح
- منية المصلي

# د مؤلف چاپ شوي آثار

10. ادیان پشت در
فارسي

11. له دروازې تر شا دینونه
پښتو

12. د انصاف او اعتدال لاره
پښتو

13. کفري الفاظ
پښتو

14. کل بچه
فارسي

15. معلومات عمومي فارسي

16. د حج لارښود
پښتو او انګلیسي

17. محمد رسول الله ﷺ سیرت اخلاق او پېژندنه
پښتو

18. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه اول
پښتو

19. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه دوهم
پښتو

20. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه دریم
پښتو

21. د اسلامي تاريخ له پانو څخه څلرم پښتو

22. د اسلامي تاريخ له پانو څخه پنځم پښتو

23. د اسلامي تاريخ له پانو څخه شپږم پښتو

24. د اسلامي تاريخ له پانو څخه اوم پښتو

25. د اسلامي تاريخ له پانو څخه آتم پښتو

26. د اسلامي تاريخ له پانو څخه نهم پښتو

27. د اسلامي تاريخ له پانو څخه لسم پښتو

28. د فقهي کتابونو له پانو څخه اول پښتو

29. د فقهي کتابونو له پانو څخه دوهم ستاسې په لاس کې

